# کندهار

د ۱۳۹۲ش کال دوهمه گڼه

(جوزا - سرطان)

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه

بلده که بلدي؟

د عبدالله محزون پوپلزي دېوان

محزون او د انځور محوري شاعرۍ پیل

د محزون شعري ځانګړتیاوو ته لنډه کتنه

د عبدالله محزون پوپلزي د دیوان قلمي نسخه



استاد بېنوا :

# ګرانه ملګریه !

ما نه غوښتل څه ولیکم او یا هغه رازونه څرګند کړم، چې زما او ستا ژوند یې بې خونده کړی دئ. ځکه چې زړو سیاسي هوښیارانو به ویل چې راز ساتل برسېره پر دې چې انسان له خطره ژغوري د خپل نفس د اداري په لحاظ هم یو ګټور مشق دئ او د هغوی په عقیده د رازونو څرګندول لویه کمزوري وه.

له همدې کبله زما نیت و، چې زما او ستا د بد قسمته ژوند د بې خوندی رازونه هم د ناکامو آرزوګانو په څېر همداسي په جهان کي له جهانه پټ پاته سي او یا د خزان وهلو پاڼو په شان د زمانې د حوادثو د توپانونو په نڅا کي د فنا لوري ته په ټوپونو – ټوپونو والوزي، خو څنګه چې زه سیاسي سړی نه یم نو دا د زړو سیاسي هوښیارانو راز مي هم پټ ونه ساتلای سو، او له څه فکره وروسته ما ته دا فکر پیدا سو، چې د ځینو رازونو پټول نه یوازې د یو بدبخته انسان پر کمزوري دلالت کوي، بلکي د هغه بدبختي لا زیاتوي. په تېره بیا ما او تا غوندي انسانان چې که په ژوند کي د خپلو بدبختیو سببونه ښکاره نه کړو او لکه څنګه چې په پټو سترګو له پټې دنیا څخه دې دنیا ته راغلي یو، همداسي په پټو سترګو او پټه خوله دا نیمګړی ژوند پرېږدو، نو زموږ د وجود او عدم تر منځ به توپیر څه وي؟ او د کومو انسانانو چې ژوند او مړینه سره توپیر و نه لري آیا هغوی به د دې فعالو کایناتو په وړاندي سرټیټي او شرمنده نه وي؟

ځکه نو زه نه غواړم چې دا سرټیټي او شرمنده ګي ما او تا ته پاته سي او په ژوندي سر په مړو کي وشمېرل سو.

نو همدا سبب دئ چې زما ګرانه ملګریه ! چې زه غواړم ستا سره زما او ستا د ژوند د بدبختیو په باب کي (د زړه څواله) وکړم او کله کله تا ته هغه رازونه په ډاګه ووایم چې زما او ستا د ژوندون د بدقسمتی او بې خوندی سبب ګرځېدلي دي. (پاته د وقایې دریم مخ)

# کندهار

علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله

د امتیاز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

**دریمه دوره**
**د ۱۳۹۲ش کال دوهمه ګڼه (غبرګولی - چنګاښ)**
**پرله پسې ۵۷ مه ګڼه**

مؤسس
**محمدولي زلمی**

سرپرست چلوونکی
**مطیع الله روهیال**

کتنپلاوی
ډاکټر عبدالرازق پالوال
څېړندوی شېرشاه رشاد
حیات الله رفیقي
عبدالکریم طالب
فضل محمد پنهان

کمپیوټر چاري
**پردیس روهیال**

پته
علامه حبیبي واټ
د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست
د کندهار مجلې دفتر
ټلیفون: ۳۰۰۱۴۴۰

**څو ضروري یادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیانمني لیکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکني لیکني معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي لیکني بیرته نه ورکول کېږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هیواد او دباندي کي د مجلې بیې**

هیواد: ۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۳۰ - کلداري

**کلنی ګډون**

هیواد: ۱۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۲۰۰ - کلداري

نور هیوادونه: ۸۰ - امریکایي ډالره

# ټولنيز ارزښتونه

هره ټولنه په خپل اجتماعي جوړښت کي دوه ډوله ارزښتونه لري. يو ئې معنوي ارزښت او بل ئې له مادي ارزښت څخه عبارت دئ. کومه ټولنه چي د مادي خوا تر څنګ خپلو معنوياتو ته ارزښت ورکوي د پرمختګ او هوسا ژوند معراج ته رسېدلې ده. خو برعکس د کومي ټولني اولسونه او پرګنې چي د دغو ارزښتونو په وړاندي بې تفاوته وي همېشه به د تاريکۍ او فلاکت په کنده کي پراته وي.

د يوې ټولني مادي ارزښتونه د هغې ټولني په اقتصادي پرمختګ کي نغښتي دي. صنعت، د لويو لارو ودانول، د نورو هيوادونو سره اقتصادي راکړه ورکړه، د وارداتو پر ځای د صادراتو ډېروالی او په مجموع کي د هيواد خلکو ته د کار او پرمختګ زمينه مساعدول د هغې ټولني مادي ارزښتونه بلل کېږي. د دې تر څنګ د دغسي ټولنو له پاره د معنوياتو پالل او ساتل بل ارزښت دئ چي بايد ډېره توجه ورته وسي.

د يوې ټولني د مادي قوت سره که معنوي اړخ مضبوط نه وي، مثال به ئې داسي وي لکه بې روحه کالبوت. په کوم کالبوت کي چي ساه نه وي ظاهري سکښت و جوړښت ئې هيڅ معنا نه لري. زموږ ټولنه هم يوه له هغو څخه ده چي تر مادي خوا ئې معنوي اړخ ډېر قوي دئ. دا به د خدای فضل وبولو چي معنوی خوا مو قوي ده. خو که دغو معنوياتو ته توجه و نه کو، دغه ارزښت به مو هم د لاسه وتلی وي. زموږ په معنوي اړخونو کي د اسلامي او مذهبي اموراتو سبمالتيا، د آزادۍ ساتنه، د فرهنګ غښتلتيا او د مشرانو او اسلافو پر لارو تګ او د هغوی نمانځل او داسي نور راځي. د عبدالله محزون پوپلزي د سلم تلين لمانځل يو له هغو مناسباتو څخه وو چي اوسنی نسل مو د پخواني هغه له حاله خبروي، دغسي غونډې مو د خپلو اسلافو او معنوياتو په اروا پوه کوي، چي له نېکه مرغه د دغسي غونډو دوام به د اطلاعاتو او فرهنګ رياست په چوکاټ کي همېشه جاري وي. خو د دغه ډول غونډو له پاره که ليکوالو ته پوره وخت او هغوی ته د اړونده موضوعاتو په باب دقيق ريفرينسونه او ماخذونه تهيه کړه سي، د دغسي غونډو کيفيت به نور هم ډېر سي.

د اطلاعاتو او فرهنګ رياست همېشه کوښښ کوي چي د دغې سيمي د حقدارو ملي مشرانو، ليکوالانو، شاعرانو، سياست پوهانو او په مجموع کي د هر هغه حقداره شخص د حق ادا ینه تر خپله وسه وکړي چي خپل ځان او انرژي ئې زموږ د ټولني د سمون په مقصد استعمال کړې وي.

په درنښت

# فهرست



استاد محمدمعصوم هوتک / کاناډا

# د عبدالله محزون پوپلزي دېوان

د ۲۰۰۹ع کال د جولای پر ۲۳مه ګران روهیال له کندهار څخه د ایمیل له لاري د عبدالله محزون د دېوان ټایپ سوي پاڼي په درو برخو کي کاناډا ته راولېږلې. په ایمیل کي ئې د ټولو پاڼو شمېر ۲۶۳ مخه وو، چي ښایي په کتابي بڼه ئې دغه شمېر زیات یا کمبوت سي.

ما دغه پاڼي په هماغه وخت کي وکتلې او جنساً مي بیرته ښاغلي روهیال ته ورولېږلې. اوس ئې چي د ۲۰۱۲ع کال د مي ۲۸ مه ده، راته لیکلي دي چي دغه دېوان چاپ ته استوي او د یوه یاداښت لیکلو غوښتنه ئې هم راڅخه کړې ده. دا څو لیکي (کرښې) مي په همدې نیامت کښلي دي.

د دغه دېوان شاعر عبدالله محزون (۱۲۲۲ – ۱۲۹۳هـ ش) زموږ په ادبي تذکرو کي د عبدالله پوپلزي او عبدالله محزون په نومو یاد سوی دئ. ده چي په خپلو اشعارو کي دغه دواړه کلمې راوړي دي، د هغو له مخي ثوک ویلای سي چي ځانته ئې (محزون) تخلص ټاکلی دئ او په کوم بیت کي چي ئې (پوپلزی) کلمه له خپل نامه سره تړلې ده، هورې ئې مراد د خپلي ختې بیانول دي، نه د تخلص. دی وایي:

عبدالله محزون په خوشي وعدو ناست دئ
انتــــــظار د یخ په شــپو کي زکام بنـد

یا:

عبدالله مـحزون (یې) تل د چا په فکر
لکه جوړ هندوستانی یې همېش جوړه

یابل ځای:

عبدالله پوپلزي بیا څه دُر نثار کړه
چي په ټول کي د همزولو سوې ممتاز

**خو دی د یوه مؤمن مسلمان پښتانه په صفت ځان د قبیلویت په تنګه کړۍ کي نه محدودوي او وایي:**

په عمل سرفرازي ده په عقبی کي
هلته نسته فلاني زي و فلاني زي

**بل ځای وایي:**

هسي نه چي درانی زه اصیل بولم
چي بې علمه سو هغه دئ کوځه درب

**زموږ دغه قادرالکلام شاعر د کندهار په (بلدي) کلي کي اوسېدئ. بلدی د کندهار د احمدشاهي ښار په جنوب کي پروت دئ. اوسېدونکي ئې زیاتره پوپلزي دي[1].**

**بلدی په ځینو تذکرو کي د (بلده) په شکل لیکل سوی دئ چي سهي نه دئ او دا د هغه ناوړه تصرف اغېزه ده چي دفتري میرزایانو د زیاترو محلي نومو په ثبت کي کړې ده.**

**د عبدالله محزون د کلام تر لوستلو وروسته څوک ویلای سي چي د علم برخه او د پښتو و فارسي ادب مطالعه ئې درلوده.**

**دی خپل استاد "محمدکرم" بولي:**

بل ملا محمد کرم څما استاد دئ
ښه دسترس وو خدای ور کړی بې وزر

**د دغه نامه یادونه ئې د زهد له صفت سره یو ځای په یوه بل شعر کي هم کړې ده:**

په ډېر هوښ ګرځي محمدکرم په زهد
په احتیاط ئې هر چا ولیدله ژبه

**د ملامحمدکرم نوم ئې د پخوانیو شاعرانو په لړ کي په داسي قرینه کي راوړي دئ چي ګویا د دغه غزل د ویلو پر وخت وفات سوی وو. په دغه نامه موږ ته د دغه عصر په شاعرانو کي کم څوک نه دئ معلوم. په بهارجانان کي د ملا محمدکریم په نامه ځیني غزلي سته چي د موسیقۍ پر مقامو باندې ویلي دي. زموږ تذکرو د دغه شاعر د ژوند زمانه د ۱۳۰۰هـ ق شاوخوا ښللې ده چي د عبدالله محزون د ژوند کلونو ته نژدې عصر راښیي. دا خبره چي ملامحمدکریم به د محزون استاد وي، نوره څېړنه غواړي[2].**

**د لوی پیر، شیخ عبدالقادر جیلاني یادونه ئې په طریقت کي د دغه ستانه د لاري د پیروۍ نښانه کېدلای سي:**

و دربار ته دي ولاړ (یم) رارسېږې لویه پیره
د خپل ځان په خولو ډوب یم لاس مي نیسه دستګیره

---

[1] "د بلدي د ګوروان" محاوره د کندهار په پښتنو کي عامه ده. وایي چي د بلدي یوه ګوروان د لوی اختر په ورځ د خپل کلي خیراتونه پرېښوول او غوښتل ئې چي اول د نورو نژدې کلیو خیراتونه راټول کړي. دی چي نورو کلیو ته رسېدی، خیراتونه وېشل سوي ول او دی خالي لاس خپل کلي راستون سو. د کلي خیراتونه هم ځني وېشل سوي ول او دی د لوی اختر په ورځ بې غوښو پاته سو. ځکه نو وایي چي په پلاني د بلدي د ګوروان کانه وسوه.

[2] د سردار غلام محمدخان طرزي د کورنۍ استاد ملامحمداکرم هم د دغي زماني عالم دئ. له امکانه لیري نه ده چي د عبدالله محزون د دېوان ملا محمدکرم دي همدا شخص وي؟

**ما د ده د فارسي ديوان خبره یو ځای لوستې وه، چې له بده مرغه اوس راسره هماغه یاداښت نسته، خو دی په خپل دېوان کې دومره قدر وایي چې پارسي شعر ئې هم "لړلړ" ویلی دئ:**

د پارسي په شــعر هــم لړلړ ږغــېږم
که حافظ ته د شیراز غواړې خو نسته

**عبدالله محزون زموږ د ادبي تاریخ لیکونکو په یوه خوله د حمید ماشوخېل د سبک پیرو بللی دئ. دی هم په دې باب تصریحات لري، خو دونه ځنې څرګندېږي چې ځان په دغه پیروۍ کې کمزوری بولي او د حمیدمقام ته رسېدل تر خپل وس تېر کار ګڼي:**

د حمــــید د باریکۍ هـــوس برهـــم کـــړم
زه لا څه یم، په نیم بیت ئې دئ رحمان ډوب

د عبدالحمید د ژبې څه تعریف کړم
هـر پښــــتون ته ئې ښه ورسوله ژبه

د حمید د خیال بکره نه نکاح کېږي
کم ښکاري به کې د دې عنقا وزر مات

د پښـــتو په شـــعر ډېر خلک ږغـېږي
د حمید د نیرنګ راز غواړې، خو نسته

**پر یوه غزله ئې د پیرمحمد کاکړ د ویناا غېزه لیدل کېږي:**

ګاه به شپه ګاه به سهار وي موږ به نه یو
ګاه روژه ګاه به افـطار وي مـوږ به نه یو

**پیرمحمد کاکړ ویلي دي:**

در بغه ګل به د ګلزار وي موږ به نه یو
د بلبل به پرې چغار وي موږ به نه یو

(۱۱۲مخ - د صحاف نشراتي مؤسسه - ۱۳۸۲ش)

**د خپل عصر په علماوو کې ئې د کندهار د صوفي صاحب ملامحمدرسول ساګزي مندین زي علیه الرحمة (۱۲۸۷هـ ق مړ) مرثیه ویلې ده چې مطلع ئې داسې ده:**

قطب زمان ولاړ اشنا، خالي روان سو صوفي
عالم سو توول لېمه تر، کندهار سو ویراني[۳]

**عبدالله محزون د نورو حساسو شاعرانو په څېر له خپلو پښتنو څخه ډېر ګیله من دئ، چې وايي:**

په پښتو کې هیڅ راپاته نه سوه خلکو
مــګر ولاړ ســم په جــوار د پارسیانو

**پر آخر د عمر ئې خوارۍ هم لیدلې دي او پوروړی سوی دئ:**

مړه به واى له مهره څه کې دا خواري پر ما لیدای
ډېــر ډېــر نــازولی وم اول د پــلار و مـــوره

**زه د دې څو کرښو په کښلو سره د ګران مطیع الله جان روهیال غاړه ورباسم او په دې پوه یم چې د عبدالله محزون غوندې حزین شاعر د حق ادا ینه په دا څو لیکو سره نه اداکېږي. هیله ده زلمي محققین ئې دغه حق ورادا کړي.**

*
* *
* * *
* * * * *
* * *
* *
*

---

[۳] داسې ښکاري چې دغه مرثیه د خلیل بن احمد پر عروضو برابره ویل سوې ده او لوستونکي ئې ښایي د لوستلو پر وخت ځینې سکته ګۍ پکښې ووېني. خو زما یقین دئ چې که پر عروضي قانون سمه ولوستل سي، سکته ګۍ ئې له منځه ځي.



څېړندوی شېرشاه رشاد

# "بلده" که "بلدی"؟

د مُعاصِر افغانستان مؤسس، ستر ټولواک لوی احمد شاه بابا (۱۱۶۰-۱۱۸۶هـ.س) چې کله په (۱۱۶۹ هـ س) کال د کندهار د نوي ښار "احمدشاهي ښار" خښته کښېښوله او په (۱۱۷۴ هـ س) کال کې بشپړ سو، دا ښار شپږ دروازې درلودې، چې یوه ئې، د ښار په جنوب کې "ښکارپر دروازه" نومېدله. د دغې دروازې جنوبي خوا ته یوه لار کښته سوې ده، که مخامخ څوک ولاړ سي، تر ذاکر لږ څه د مخه، یو زابر (د زیم ایستلو واله) مخې ته راځي، چې له لوېدیزي خوا څخه ختیځ لوري ته بهېږي، اوس په دې راوروسته کې د زابر پر غاړه د شهر سُرخ، مُنارې او روه رباط پخوانۍ لاره پخه سوې ده. پر دغه پخه لاره چې څوک سم سي، د اوسني (مُعاصِر) افغانستان د بنسټ ایښوونکي لوی احمد شاه بابا د پاچهۍ د غنمو وږی پر بګړۍ د ټومبلو (تاجپوشۍ) د درنې غونډې ویاړلې سیمي شهر سُرخ ته درېږي، چې د دې سیمي څخه جنوب-ختیځ لوري ته یوه نرۍ لاره جلا سوې

ده او ختیځه خوا ئې هغه کلي ته ګرځي، کوم چي اوسېدونکي ئې "بلدی" بولي او زموږ د نن ورځي د نمانځغونډي نازکخیاله شاعر، د کندهار ادبستان غړی، خدای بخښلی عبدالله محزون پوپلزی، د دغه کلي اوسېدونکی وو.

د دې کلي ختیځي خوا ته شېر سُرخ، جنوب لوېدیز خوا ته ذاکر، په جنوب کي د پښتو ژبي د پیاوړي او د عبدالله محزون، د معاصر شاعر خدای بخښلي میرزا حنان بارکزي د اوسېدو کلی "مرت کلا"، لوېدیزي خوا ته ئې لوی کاریزک، شمال ته ئې د سبزیکار یوه څنډه پراته دي. شا و خوا یو سلو شپېته کوره پکښي اوسي، ډېری خلک ئې پوپلزي دي، یو څو کوره بارکزي او سیدان هم پکښي اوسي (د حاجي شېر احمد خان معلم په خوله).

د پښتو ادب په منځنۍ دوره کي هر ځای چي د خدای بخښلي محزون یادونه سوې ده، پرته له پښتانه شعراء دوهم ټوک څخه په ډېرو اسنادو کي د ده د کلي نوم د "بلده" په بڼه راغلی دئ.

د افغانستان د جغرافیایي قاموس په لومړي ټوک، ۲۶۸ مخ د "ب" په ردیف کي هم دا نوم په "بلده" کښل سوی دئ.

په زړه پوري لا دا ده، چي ښاغلي محمد ولي ځلمي هم د "کندهار" نومي اثر په ۲۰۵ مخ کي "عبد الله د بلده" کښلی دئ، دا هېښتیا مي نوره لا هم هله ډېره سوه، کله چي د عبدالغني پنجابي د "مروری بر وضع سیاسي آسیایی میانه" اثر په ژباړه کي ښاغلي عبدالرحیم هاتف په خپله لاس کښلې "اتوبیوګرافی" کي د ده د مورني نیکه ملا (میرزا) رحمت الله بابا د پلار عبدالله محزون په یادونه کي د دوی د اوسېدو کلی "بلده" بللی دئ.

په پورتنیو آثارو کي د خدای بخښلي عبدالله محزون د اوسېدو د کلي د نامه دغه ډول ضبط زه و دې ته وهڅولم، څو د دې نامه د څېړني له پاره د ځاینوموئو (Toponomy) د څېړني د میتودولوژۍ پر هغه اصل تکیه وکړم، چي د سیمي د اوسېدونکو له خولې د نامه وینګ راوزي او یا د دوی پر ژبه په هغه ډول جاري او مستعمل دئ. ځکه د دغو خلکو د کلیماتو او لغتو وینګ (تلفظ) او د هغو دقیق اورېدنګ او کښنګ څېړونکی د کلیمې ریښې او معنا ته نژدې کولای سي.

د دغه کلي اوسېدونکي خپل کلی "بلدی" بولي او د دې نامه پر آهنګ او وزن سم د دې سیمي د کلیو نور نومان هم لرو، لکه : کدنی، ده ختی، ګیرندی، سوزنی، بلندی، دېمراسی او داسي نور.

زما د دې یادوني ملاتړ د علامه رشاد د "کندهار یادابښتونه" دوهم ټوک په ۲۲۵ مخ کي د محاکمو د قاضیانو په بحث کي هم لیدل کېږي، چي دکلي نوم ئې د "بلدی" په بڼه کښلی دئ.

همدا راز د پښتو په اصطلاحاتو او محاورو کي هم دا محاوره، چي "د بلدي د ګوروان کانه په وسوه" ډېره مروجه او عامه ده او په هغو مواردو کي کارېږي، چي کوم څوک له ډېره حرصه خپله برخه هم پکښي ایږدي.

پای

# محزون او د انځور محوري شاعرۍ پیل

پښتو شعر له کلاسیک پېر څخه و معاصر لوري ته يو پرمختګ دا کړی دئ، چي له اشياوو سره ذهني اړيکه د خوځنده او ګڼتوکيو انځوريزو ټولګو په رامنځته کولو کي اوس ډېره دود شوې ده، نظر دې ته چي په کلاسيکه شاعرۍ کي پر ولاړو، ساکنو او صامتو تشبيهي عناصرو ډېره تکيه کېدله.

نومهالي کره کتونکي له همدې امله په شعر کي له اشياوو سره د ذهني اړيکو خوځښت ته ډېر اهميت ورکوي.

رضابراهني خو لا فکر کوي، چي شعر د کلماتو په مرسته د اشياوو د هغو خوځښتونو انځورول دي، چي زموږ په ذهن کي نڅا ته راپاڅېږي (طلا در مس).

د دې له پاره چي په شعر کي د انځورونو خوځنده ارزښت وپېژنو، بېلګو ته به ورشو:

په بيانپوهنه کي د تشبيه د بحث پر مهال به مو خامخا دغه بېلګه په مخه درغلې وي:

خو به شمېرمه غمونه د هجران

هو مره ډېر دي لکه رېګ د بيابان

بيا به مو دا هم لوستي وي، چي په دې بيت کي (غمونه) مشبه، (رېګ ) مشبه به، ډېروالی وجه شبه او (لکه) هم د تشبه له اداتو څخه دي. د تشبيه منطق سم دئ، خو ګورو، چي له هنري پلوه بيت ډېر په زړه پوري نه دئ، شاعر څه غواړي؟ ايا همدا کافي ده چي ووايي دهجران غمونه د بيابان له رېګه ډېر



څېړندوی عبدالغفور لېوال

دي؟ یوه ولاړه تشبیه، له صامتو ارکانو او تقریباً له هیڅ انځوریز ارزښت سره، د یوې سولیدلي منځپانګې د زباتولو له پاره.
د انساني ټولنې له پرمختګ سره چې تفکر او تخیل پېچلی کېږي، هنر و ښکلا ته د انسانانو لاشعوري او غریزي تنده او اړتیا زیاتېږي، بیا نه دا بیت ښایي ډېر په زړه پوري نه وي، نوښتګر شاعران هڅه کوي، د خپلو تشبیهاتو عناصر متحرک او ژوندي کړي، د دغو ژوندیو عناصرو له یو ځای کولو څخه یو بشپړ انځور جوړ کړي او په دې توګه د خپل لوستونکي او اورېدونکي هنري تنده پرې خړوبه کړای شي. همداسې کار زموږ شاعر عبدالله محزون راپیل کړی دئ او په دې توګه ئې د کلاسیک او معاصر شاعرانه نسل تر منځ یو هنري پول تړلی دئ، راځئ د هجران په اړه د عبدالله محزون دوه کوچني انځورونه وګورو:

د هجران په کلي کور که ئې ګذر سي
پر رخسار ئې تل پاشلی وي غبار

زموږ دې شاعر د هجران د تمثیل له پاره نوې هنري تجربه ترلاس لاندې لري:
اول یو غایب کرکټر ګورو، چې نه (زه) یم نه (موږ)، کوم څوک دئ راروان دئ، ستومانه او که د هجران په کلي کور ئې ګذر وشي نو .... د کلام د ډراماټورایز کولو له پاره د یوه غایب پرسوناژ استخدام عجیبه مرسته کولای شي، ځکه لوستونکی له پوښتنو سره مخامخ کوي، څوک دئ؟ چیري دئ؟ څه کوي او ولې ئې کوي؟ دا پوښتنې د لوستونکي تلوسه راژوندۍ کوي او د هنر، خو یو کار د تلوسې راپارول دي. شاعر وړاندې ځي:
پر رخسار یې تل پاشلي وي غبار ... یو بشپړ شاعرانه تصویر، هغه مجهول غایب چې د هجران پر کلي کور ئې ګذر شوی دئ، پر رخسار ئې غبار پاشلی دئ ... د هجران له سختۍ څخه دا شکایت خوځنده دئ، هنري دئ او له اشیاوو سره نوې ذهني اړیکه رامنځته کوي. له تشبیه او استعارې څخه د انځور هستولو پر لور د پرمختګ زیری دئ او په دې توګه وینو چې عبدالله محزون په خپل دېوان کي د ګڼو په زړه پوري شاعرانه انځورونو په رامنځته کولو سره داسې د شاعرانه نوښت پر لوري ګام اخلي.
عبدالله محزون د بیان او شاعرانه تکنیکونو له نظره په هندي سبک کي د نادرو تشبیهاتو او استعارو شاعر حمید ته ډېر ورته دئ، خو زموږ د دغه شاعر کمال دا دئ، چې د تشبیهي او استعاري انځورونو اجزاء او عناصر په یوه خوځنده چاپېریال کي تمثیلوي او هغه د براهني په تعبیر په ذهن کي اشیا د کلماتو په مرسته په نڅا راولي، راځئ څو بیلګې ئې وګورو:

د العشق څخه سوړ سوی زړګی پرېووت
که د شپې د برخوابۍ څه زلمی پرېووت
دائې خوله ده په خندا سره خپره سوه
که د ګلو له دستې څه نیځی پرېووت
چي ښکاره دي سپین جبین سو ګلرخسار
چي سپوږمۍ سوه راښېوه دا هی هی پرېووت
چي ئې ولیده برېښنا ستا د لبانو
د مشال له سره هلته لوګی پرېووت
ترپایه

هیڅ تشبیهي انځور ولاړ نه دئ:
خوله په خندا د خپرېدو په حال کي ده او د ګلو له دستې څخه د نیځي د لوېدلو لحظه ئې د تشبیه بل لوری دئ، دواړه لوري خوځنده دي د اشیاوو نڅا ته ځیر شئ، د عبدالله محزون د تشبیهاتو نوښت له نورو کلاسیکانو

سره دا دئ، چې پخوانو يوازې له ګل سره د خولې په ورته بللو سره اکتفا کوله خو زموږ دغه شاعر دواړه په خوځښت راولي او ښکلا ئې څو ځله زياتوي. د محزون سپوږمۍ هم ولاړه نه ده، بلکې د شاعر د خيال په زور ځمکې ته راشيوه کېږي، د مشال له سره د لوګي د پرېوتلو شېبه هم د لبانو له يوې پرکنده برېښنا سره هغه نڅاګره تشبيه ده چې تاسو ئې له هنري تمثيل څخه خوند اخيستلای شئ.

راځئ دا بل په زړه پوري انځوريز بيت وګورو، چې يوه بشپړه تابلو ئې ګڼلای شو:

څو باران دي د زړه ځمکه لنده نه کي
په خالي اوريځې څه سي يا په باد

د پرله پسې عيني انځورونو په لړ کې د زړه د ځمکې ذهني انځور ډېر ښکلی اوډل شوی دئ، له اشياو سره د ذهني اړيکو متناوب خوځښت چې د تصويري بافت منطق ئې ومنلای شي، يو لوی شاعرانه کمال ګڼل کېږي، په دې بيت کې باد، تشې وريځې او باران ياد شوي او په دې منځ کې د زړه د ځمکې لندېدل د شاعر اصلي غوښتنه ده، د عيني تصويرونو په منځ کې ناڅاپه د زړه د ځمکې د لندېدلو تصور ښکلا رامنځته کوي او زه خو پايله اخلم، چې په دې بيت کې زموږ د شاعر کارولی تخنيک خورا معاصر او نوی دئ.

د انځورګرۍ دا باريکه تجربه وګورئ:

د زړه وينو مې د سترګو دورې سرې کړې
کشاده چې په خندا کې لبان ورو ورو
شاپيرياني ستا د حسن دلالي کړي
د جفا ګام ږده پر موږ غريبان ورو ورو

د سترګو د دورو سره کېدل او بيا بل لوري ته په خندا د لبانو ورو ورو پرانيستل کېدل هغه متحرک اجزاء دي، چې د دوو ښکليو تصويرونو ښکلا لاپسې زياتوي او دا ښيي، چې زموږ محزون شاعر نور نو د ولاړو او بېروحه مفاهيمو په مرسته د تشبيه ګانو په کتارولو بسياينه نه کوي او غواړي نوي څه ووايي.

راځئ په لاندنيو څوبيتونو کې خوځنده تصويرونه وګورو، چې په پخواني لحن د يوې نوې شاعرۍ رنګ لري:

مه پاڅېږه چې پاڅېږې محشر پاڅي
کښېنه يو ساعت چې کښېنې ضرر پاڅي

چې ته نه يې يا دي غم نه وي په زړه کي
ځي کوم که مي ومغ ته افسر پاڅي

چې په خيال راسي کاته د آهو چشمو
د هوسه مي آواز د وزر پاڅي

پر کېمخاب چې پروت يم ستا بې ذکره فکره
دوړخي رنګه مي بوی تر بستر پاڅي

ترپايه

د نومهالي شاعرۍ يوه ځانګړتيا که دا وګڼو چې ورو ورو د انځور محورۍ خوا ته ورنږدې کېږي، نو پيلامه ئې د عبدالله محزون او د هغه د نورو هممهاله شاعرانو له هڅو څخه ځکه ګڼلای شو، چې په شعر کې له اشياوو سره د متحرکي او خوځنده ذهني رابطې ارادي او سيستماتيک بهير ئې راپيل کړی دئ.

زلميو شاعرانو ته بويه، چې د کلاسيکي او معاصري شاعرۍ د هنري ګوزار دغه ځانګړني له ټولو جزياتو سره ولولي او په شعر کې د انځور هستونې په زده کړه او پند اخيستلو کې ئې د پخوانو شاعرانو ارزښتمنې تجربې وګڼي.

پای

ليکوال: عبدالنافع ثنا

# د محزون شعري ځانګړتياوو ته لنډه کتنه

د کندهار شاعران عموماً سرلاري هغه ئې د هندي سبک د اغېز په سيوري کي غوړېدلي دي. که څه هم دوی سل په سله کي د همدې يوه مکتب ټينګ پيرو نه دي پاته سوي او ځای ځای ئې ګام اړولی، مدحيو ته ئې مخه کړې او يا ئې هم دولختي بيتونه تعقيب کړي دي. د عبدالله محزون دېوان هم له پورته وضعيت څخه مستثنی نه دئ. خو له دې سره سره، د دېوان عمومي پېژندګلوي په هندي سبک سره کولای سو ځکه همدا سبک په دېوان کي حاکميت لري. د خبرو پيل مي ځکه د سبک له بحثه وکړ چي د محزون د شاعرۍ ځيني عمده ځانګړني همدا د سبک چوکاټ ورته تراشلي دي. محزون د بېلابيلو شاعرانو څخه اغېزمن دئ چي په لاندي بيتونو کي ئې له ورايه څرګندېږي:

د حميد موی شګاف خيال ته نظر کړه
ګوندي سې د ده په جذب تېز نظره
د ميرزا حنان د شعر نکتې زده کړه
معلومېږي چي پر دېرو باندي غوره
د رحمان د شعر بوی د معجزې ځي
صرير ژر کاندي له پيره برابره
بل رحمت داوی لري کتاب دلکش
ګمان نه کړم که ئې څوک لري دفتره
شمس الدين آخندزاده د قلچ آباد دئ
د قلم په شان ئې ژبه وه دوه سره

د دې په څنګ کي يوه اندازه له فارسي شاعرۍ سره هم بلد پاته سوی دئ چي په دېوان کې ځای ځای ورته اشاره سوې ده. ځکه نو د نومړي په شاعرۍ کي د دې ټولو بېلابېلو شاعرانو فردي او مکتبي رنګ له ورايه څرګند دي.

د هندي سبک اساس پر تک بيتۍ او يا هم د بيت پر وحدت او استقلاليت ولاړ دئ چي هر بيت ئې له يوې پېش مسرۍ او يوې مسرۍ څخه جوړ دئ. هغه داسي چي په لومړۍ مسرۍ کي يوه عادي خبره د مدعا په ډول وړاندي کېږي او په دوهمه مسرۍ کي مدعا د مثال په وړاندي کولو سره ثابتېږي. يعني، لومړۍ مسرۍ يوه عادي خبره ده خو دوهمه مسرۍ همغه عادي خبره په هنريت پسولي. په بل عبارت، دا سبک د لف او نشر د صنعت له مخي عيار دئ چي لومړۍ مسرۍ ئې د مدعا او دوهمه ئې مثل او همدا راز

لومړۍ ئې معقوله او دوهمه ئې محسوسه مسرۍ بلل کېږي. دا چې په دې سبک کې د شعر ټول ښایست او هنریت د هغه په تشبیه کې نغښتی وي، ځکه نو هر شاعر کوښښ کوي چې نوې تشبیه وړاندې کړي او دا کار لامل ګرځېدلی دئ چې د ځینو شاعرانو تشبیه ګانې ډېرې پېچلې سي او د غرابت خوا ته ولاړې سي. که څه هم په دې سبک کې دوې لارې دي چې یوه ئې د معتدلو او آسانه تشبیه ګانو لاره ده چې کلیم کاشاني او صایب تبریزي ئې په استازیتوب یادولای سو او دوهمه ئې د پېچلو او سختو تشبیه ګانو لاره ده چې په استازیتوب ئې بېدل یادولای سو. لومړۍ لاره په ایران او دوهمه ئې په هند کې خوښې وړ وه خو په افغانستان کې دواړو لارو خپل پیروان او شوقیان درلودلي دي. عبدالله محزون د معتدلو تشبیه ګانو لاروی دئ خو دا آدرس ئې له حمید مومند څخه اخیستی دئ ځکه په پښتو کې د هندي سبک په سرلارو کې د معتدلو تشبیه ګانو سالار حمید مومند دئ او عبدالله محزون هم له ده څخه ډېر اغېزمن پاته سوی دئ.

د محزون دېوان د تشبیه ګانو څخه ډک دئ او ډیرې ښې تشبیه ګانې لري، خو یوه خبره باید یاده سي او هغه دا چې په ځینو ځایونو کې ئې د تشبیه ګانو تکراریتوب ډېر څرګند دئ. دا عیب نه دئ چې مدعا دې تکراري وي مګر دا عیب دئ چې تشبیه تکراري وي. لکه صایب تبریزي چې وائي:

یک عمر می توان سخن از زلف یار گفت
دربند این مباش که سخن از یار نمانده است

د محزون په دیوان کې د تشبیه ګانو تکرار ځای ځای ترسترګو کېږي لکه:

**که ګرېوان کمه پاره او ډیره کاږم**
**چې په زلفو دې تناب یم، نه یم ګرم**

له تناب سره د زلفو تشبیه او په هغه باندې د عاشق تړل کېدل نوې خبره نه ده.

په عین حال کې د تشبیه ګانو کیفیت او هنریت هم یوه مهمه خبره ده. د محزون تشبیه ګانې په ځینو ځایونو کې کمزوري او غیر هنري دي لکه:

**رقیب یو دئ زما آه ډېر کړه سرغوځې**
**باري ولې دي په مثل د قصاب کړم**

د هندي سبک یوه خاصه دا ده چې د نوو علمي، فلسفي او فکري مفاهیمو ظرفیت نه لري بلکې له مخکې مطرح سوي فکر په نوې بڼه او نوې جامه پسولي او وړاندې کوي ئې. لکه د بیدل په دې بیت کې:

**هستی موهوم ما یک لب گشودن بیش نیست**
**چون حباب از خجلت اظهار خاموشیم ما**

دا ټولو ته معلومه ته چې انسان ډېر ضعیف دئ او مازې پلمه سبب ګرځي چې ژوند ئې له منځه ولاړ سي خو بېدل دلته د کوبۍ سره په تشبیه کولو دې فکر ته یو تصویر جوړ کړ او یا لکه محمد صدیق پسرلی چې وائي:

**پل د رهنما پر پله که ږدې نو هم دیده یې بده**
**پټې سترګې، پټه خوله په نورو پسې سیورې ځې**

موضوع همغه ده چي باید په پټو سترګو منل او یا په عامه اصطلاح کورکورانه تقلید باید و نه سي خو همدا زړه خبره په نوي مضمون سره مطرح سوې ده چي هنریت او خوند ئې پکښي پیدا کړی دئ. دا ځانګړنه د عبدالله محزون په شاعرۍ کي هم ډېره پیاوړې ده. په دېوان کي ئې ډېري لوړي خبري راغلي، په نوي انداز او نوو تشبیهاتو سره مګر د موضوع له پلوه نوښت پکښي په ندرت تر سترګو کېږي.

همداراز په هندي سبک کي د لف او نشر او یا د تشبیه له صنعته آخوا نور ادبي صناعات دونه خاص پاملرنه ځان ته نه جلبوي او د شاعر له پاره د دومره ډېر اهمیت وړ نه وي. خو له دې سره سره، د عبدالله محزون دېوان د ډېرو شعري صنعتونو غنا لري لکه دا بیت چي د موسیقیت یوه ډېره ښه نمونه ده:

رنګ په رنګ د پرنګ دا رنګه رنګ مکړه
چي بې دین نه سې د ده د دین په بود خوښ

په دې ځای کی محزون ځان د الفاظو د یوه غوره بازیګر په توګه را څرګند کړی دئ. او یا د دې بیت هنریت:

**مخ د یار ګوره بلېږي لکه شمع**
**زړه زما ورته نولیږي لکه شمع**

په دې ځای کي له یوې مرجع څخه د دوو اهدافو خړوبول او په دونه هنریت سره، د کمال خبره ده. محزون دلته د شمعي رڼا د یار مخ ته ځانګړې کړې او د نولېدلو برخه ئې خپل ځان ته راجع کړې ده.

د محزون دېوان د الفاظو له اړخه خورا ډېر بډایه دئ. د دې یو علت خو د محزون مطالعه ده او بل لوی لامل ئې دا دي چي محزون د نورو شاعرانو غوندي له دیني علمه بهره مند تېر سوی دئ او پر دې اساس نو د عربي او فارسي الفاظو پرېمانه سرچینو ته لاسرسی لري. شاعران بالعموم او په تیره بیا کندهاري پخوائي شاعران اکثره د ملائي سابقه لري چي په شاعرۍ کي ئې هم له همدې امله مذهبي رنګ ډېر پیاوړی وي، نه یوازي د محتوا له پلوه بلکي د الفاظو او کلماتو د استعمال له پلوه هم. محزون له دې بیلګو څخه مستثنی نه دئ، د کتاب ډېره برخه ئې دیني وعظ او نصیحت ته ځانګړې کړې او حتی په غزلو کي ئې هم دا رنګ پیاوړی دئ.

محزون په ادب کي ادبي چوکاټونه مات کړي او د ځینو الفاظو څخه ئې په جرئت استفاده کړې ده. که څه هم دا جرئت هغه د خلکو د علاقې وړ رندانه جرئت نه دئ او نه هم فکري او یا محتوائي جرئت دي، خو د ځینو الفاظو څخه ئې بې باکانه ګټه اخیستې لکه:

**پروځ څو واره ګردش دا نامراد خوري**
**پیچ و تاب خوري چي په رقص پریوزي دا رنډی**

او یا:

**کل جهان ئې په ارمان و ځان ته تېر کړه**
**مکاره لویه رنډی د پنجاب**

خو دا اقرار دی په خپله کوي چي په شاعرۍ کي د بېباکۍ سړی نه دئ لکه چي وائي:

**عبدالله په شاعرۍ کي شوخي مه کړه**
**پر دې لاره په دربي ځغلي میران شوخ**

دلته په ضمن کي خپل حریف هم راپېژني.

د محزون د شعر ژبنیزه لهجه شیر او شکر ده. دا چي د بېلابېلو شاعرانو تر تاثیر لاندي دئ، په لهجه کي ئې هم تاثیرات تر سترګو کېږي خو په عین حال کي له ډېرو سوچه کندهاري الفاظو، تلفظاتو او اصطلاحاتو څخه کار اخلي چي دا کار ئې د شعر طبعیتوب ته دلایل پیدا کوي همدارازیوه په زړه پوري ښېګڼه دا لري چي شعرئې یوازي د وچ فکر تولید نه دئ بلکي احساسات پکښي اخښلي دي او تر ډېره ځایه طبیعي یون کوي. ځان ته ئې فاحش قیدونه او محدودیتونه نه دي ټاکلي بلکي خپل احساسات په طبیعي رنګ څرګندوي.

***

د ح. رزمي ټولونه:

## ګل خبري

- ستر مغزونه د مفکورو په باره کي رږغېږي، متوسط مغزونه د پېښو په هکله خبري کوي او کوچني مغزونه د خلکو په اړه بیان کوي.
- هغه څوک چي پیسې بایلي هغه ډېر څه د لاسه ورکوي، هغه څوک چي یو دوست د لاسه ورکوي هغه ېښي ډېر څه بایلي، هغه څوک چي امید د لاسه ورکوي هغه ټوله شیان بایلي.
- پرون تاریخ دئ، نن سوغات دئ، سبا معما ده.
- مهربان زړه باغ دئ، مهربان فکر ریښه ده، مهربانه خبره ګل دئ، مهربان عمل مېوه ده.
- تل په یاد لره چي ته هم د بل هر چا په شان یو خاص انسان یې.
- د کتاب په باب د هغه د پوښ له مخي قضاوت مه کوه.
- تر څو چي ژوندی یې خوشحاله او سه ځکه بیا به د تل له پاره مړ یې.
- هیڅکله د اوبو ژور تیا په دواړو پښو مه ګوره.
- که ته رشتیا ووایې هیڅکله به ضرورت و نه لرې چي کم شی په یاد وساتې.
- د ژوند ستره کنایه دا ده چي هیڅوک د هغه څخه ژوندی نه سي وتلای.
- که ستا شونډان هر وخت ښوري نو زیات څه نه سې زده کولای.
- هر څوک تر هغه وخت پوري نورمال ایسي چي ته یې پېژنې.
- خوشحاله واده د بخت په خزانه کي تر ټولو ستره متاع ده.
- د انسانانو د زړونو تر منځ ډېر لنډ واټن خندا ده.
- هیڅوک د ازل څخه کمزوری نه دئ.
- که ته ما هېروې، په حقیقت کي زما څخه خپل ځان هېروې.

لیکوال: مطیع الله روهیال

# د عبدالله محزون د دېوان قلمي نسخه

کله چې په ۱۳۱۱ش کال په کندهار کې پښتو انجمن جوړ سو. ورسره سم پښتو مجله چاپ سوه. د دې تر څنګ د انجمن غړو وپتېیله چې د پښتو د زړو او خطي آثارو د راټولولو کار هم پیل کړي. د دغه کار د تر سره کولو له پاره داسي چا ته اړتیا وه، چې هم امین وي او هم د لویې حوصلې څښتن وي. اروابناد استاد محمدګل نوري (۱۳۵۲ش مړ) یو له هغو کسانو څخه وو چې پر دغو دوو ځانګړتیاوو سربېره ئې نور خصوصیتونه هم لرل. نو ځکه دغه سخت او ستونزمن کار د انجمن د دغه پُرکاره او خواریکښ غړي په پچه وخوت.

استاد نوري که له یوې خوا د پښتو د فوکلوریکو آثارو په ټولولو او یو ځای کولو بوخت وو، د هغه تر څنګ ئې د پښتو خطي آثارو د موندني په موخه د کندهار لیري و نژدې کلي و محلې هم تر پښو وکښلې. تر خورا ډېرو ستړیاوو وروسته ئې د ځینو نورو خطي آثارو تر څنګ د ملا محمدامان داوي، حاجي جمعه بارکزي، شمس الدین کاکړ، عبدالله پوپلزي، عبدالنبي بېټني، شېرمحمد هوتک، ملا یارمحمد او میرزا حنان بارکزي دېوانونه وموندل. تر دې بل سخت او ستونزمن کار چې استاد نوري په دې اړه وکړ، هغه له دغو موندل سوو نسخو څخه په خپل قلم دوهم نقل اخیستل وو. د دېوانونو اصل او خپلي استنساخ سوي کاپي ئې د نورو قلمي آثارو په شمول د انجمن کتابخانې ته وسپارل.

دا دېوانونه تر هغه مهاله چې پښتو انجمن په کندهار کي وو د دغه انجمن په کتابخانه کي محفوظ ول. کله چې د کندهار ادبي انجمن کابل ته انتقال سو او

په ۱۳۱٦ش کال د دغه انجمن او کابل ادبي انجمن له یو ځای کېدو څخه پښتو ټولنه رامنځته سوه، د پښتو انجمن خطي زېرمه هم د پښتو ټولني کتابخانې ته وسپارله سوه.

د مرحوم نوري په لاس له راټولو سوو دېوانونو څخه د شمس الدين کاکړ، میرزا حنان بارکزي او حاجي جمعه بارکزي دېوانونه د پښتو ادب د لویو کالخوایانو هر یوه لوی استاد علامه حبیبي، فاضل استاد بېنوا او علامه بابا په سپارښت او ټینگار چاپ او خپاره سول. دا درې دېوانونه ایله په تقریباً نیمه پېړۍ کي د پښتو ټولني له خوا چاپ سول. خو له هغې جملې څخه پنځه پاته دېوانونه لا تر اوسه د چاپ انتظار باسي. په دغو منتظرينو کي يو هم د عبدالله محزون پوپلزي دېوان دئ.

د محزون د دېوان تر څنگ د ملا شېرمحمد او عبدالنبي بېټني پر دېوانونو ما کار کړی دئ او که خدای کول په نژدې راتلونکي کي به چاپ سي. د عبدالله محزون د دېوان يوازينۍ معلومه خطي نسخه ئې د افغانستان په ملي آرشيف کي تر ۹۱ لمبر لاندي په ۴/۴۷ شماره قيد ده.

نسخه د اروابناد نوري په ښکلي خط خطاطي سوېده. کچه ئې ۱۹ × ۳۱ سانتي متره ده. نسخه پر سپين خارجي کاغذ نقل سوېده، خط ئې ښکلی نسخ دئ، ځای ځای نستعليق هم پکښې راځي. ټوله نسخه ۸۴ پاڼي او ۱٦۷ مخونه لري. په زياتو مخونو کې د بيتونو شمېر اوولس دئ، خو داسي صفحې هم پکښې پيدا کېږي چي د بيتونو شمېر ئې پنځلسو یا شپاړسو ته رسېږي.

تر بسم الله وروسته په دې بيت پيلېږي:

خدايه عشق په ذوق و شوق د دلربا را
هم له دوی څخه شفقت مهر وفا را

د نسخې پای داسي ختم سوی دئ:

"باهتمام ع ص محمد عثمان خان رئيس انجمن ادبی پشتو قندهاری عفي عنه".

د عبدالله محزون دېوان ۲۱۳ غزلي، يوه الف نامه، دوه پارسي شېروشکر، يو ترجيع بند، يو مربع، يو مخمس، يو مناجات، قصۀ از احوال مصنف او په آخر کي يو اوږد مثنوي لري، چي د ټول دېوان بيتونه ئې ۲۵۵٦ کېږي.

د دېوان تر غزلو او متفرقاتو وروسته د "قصۀ از احوال مصنف" تر عنوان لاندي يوه بېله منظومه رساله راغلې ده. د دغي منظومي رسالې د بيتونو شمېر ۳۵۰ دئ. په دې رساله کي د "سبب تاليف کتاب، طريقه د شاعرۍ، در بيان گرفتاری و لاچارۍ، تعريف سراپای معشوق" تر بېلابېلو عنوانونو لاندي موضوعات منظوم سوي دي. د دې رسالې په پای کي "باب دربيان کجروی فلک" تر عنوان

لاندي له فلکه شکایت او د زمانې ناخوالو ته په منظومه بڼه اشاره سوېده.

تر دغي منظومي رسالې وروسته او د دېوان په آخر کي یو اوږد مثنوي راغلی دئ. مثنوي په حمد و ثنا شرو کېږي او بېلابېل اجتماعي او ټولنیز موضوعات پکښې منظوم سوي دي، لکه: د کبر آفت، د درواغو آفت، د ژبي آفت، د ډهل و سرنا آفت، د حسد آفت او د بې لمانځی آفت.

د دېوان حاضر متن چي د ارواښاد نوري صاحب په قلم خطاطي سوی دئ په پورته سکښت و رغښت په ملي ارشیف کي خوندي دئ. د تاسف خبره دا ده چي نوري مرحوم د دې ذکر کړی نه دئ چي د دغي نسخې اصل چي اوسنی نسخه ځني نقل سوې ده، چیري دئ. هغه ئې چیري موندلی او بیا څه سو. دا هغه سوالونه دي چي ترا بده به همداسي لاینحله پاته وي.

د ارواښاد محزون د دېوان په باب تر لوړو خبرو وروسته زه دوې یادوني د پام وړ بولم:

**لومړی:** ارواښاد عبدالقدیر مشتري نجرابي چي کله په ۱۳۶۵ش کال د "فهرست نسخ خطی پښتوی آرشیف ملی" کوچنی رساله ترتیب او خپره کړه. د دغي رسالې په ۶۴ مخ کي د عبدالله پوپلزي د دېوان معرفي راغلې ده.

د دېوان په اړه ئې لنډ لنډ مشخصات ذکر کړي او په پای کي ئې یو کوچنوټی یادښت هم ورسره ضمیمه کړی دئ. د لنډو مشخصاتو په لومړی لیکه کي ئې د کتاب د کتابت په باب داسي لیکلي دي: "سال کتابت دقیق معلوم نیست شاید در اخیر قرن سیزدهم نوشته شده باشد".

د دغه عبارت د "شاید" قید چي د نسخې د کتابت کال ئې د مجهولیت په سرنوشت اخته کړی دئ، د ارواښاد محزون د دېوان له هغه عربي عبارت څخه منشاء اخلي چي د دېوان په پای کي لیکل سوی دئ. په دې ډول: "فقد تم هذا کتاب دیوان عبدالله فی یوم السبت فی سنه ثلاث و خمسین بعد الف من هجرة النبی صلی الله علیه وسلم بید اقل العباد ملا محمدگل نورزائی کاریزکی نواسة میا نورمحمد قدس سره".

په پورته عربي عبارت کي د "ثلاث و خمسین بعد الف" څخه (۱۰۵۳هـ ق) جوړېږي. خو زه په غالب گومان دا وایم چي دغه "ثلاث و خمسین بعد الف" یوه قلمي سهوه ده، دغه سهوه باید داسي اصلاح سي: "ثلاث و خمسین و ثلاث مائة بعد الف" چي (۱۳۵۳هـق) ځني مراد سي. ۱۳۵۳هـ ق کال د ۱۳۱۳ش کال سره برابرېږي. دغه کال په کندهار کي د پښتو ادبي انجمن د جوړېدو دریم کال دئ، چي په دغه کال ارواښاد نوري د عبدالله پوپلزي د دېوان له نقله فارغ سوی دئ.

د آرشيف د خطي نسخو د فهرست اروانباد مؤلف که د لږ دقت څخه کار اخيستی وای، او دغي قلمي نيمګړتيا ته ئې پام سوی وای، کېدای سوای چي د عبدالله پوپلزي د دېوان د کتابت دقيق کال ئې معلوم کړی وای. په هر صورت په دې اړه نهايي پرېکړه نورو څېړنو او تحقيقاتو ته اړتيا لري، اوسنۍ نيمکله پرېکړه ما د خپلو تحقيقاتو په رڼا کي کړې ده. حتمي او نهايي نه ده.

**دوهم**: د افغانستان مشهور او پرکاره مؤرخ استاد عزيزالدين وکيلي (۲۰۱۰م مړ) د خپل ضخيم اثر (تېمورشاه دراني - دوهم ټوک - دوهم چاپ - ۱۳۴۶ش) په ۴۷۸ - ۴۷۹ مخ کي د وکيل الدوله عبدالله خان دېوان بېګي ذکر کوي. د دغه ذولسانين شاعر په پېژندنه کي د هغه د پښتو او دري اشعارو نمونې وړاندي کوي، او په حاشيه کي يو وضاحت ډوله حاشيه پر اضافه کوي او ليکي چي اروانباد وکيل الدوله د پښتو او دري ژبو دېوانونه لرل او د پښتو دېوان يوه نسخه ئې د وکيلي مرحوم په کتابخانه کي خوندي ده.

دغه وضاحت د آريانا دائرة المعارف شپږم ټوک ته هم لاره کړېده، د نوموړي کتاب په ۵۳۶ مخ کي هم وکيل الدوله د پښتو او دري ژبو دېوان لرونکی شاعر معرفي سوی دئ. که څه هم د ليکني ماخذ ياد سوی نه دئ خو په غالب ګومان به ئې دغه اقتباس د استاد وکيلي له اثره کړی وي.

په ۱۳۵۶ش کال د کابل مجلې په پنځمه ګڼه کي استاد هيوادمل صاحب "د وکيل الدوله کورنۍ او په پښتو ادب کي د دوی برخه" تر عنوان لاندي يوه مفصله مقاله خپره کړه، د دغې مقالې په ۲۲ مخ په لمنليک کي وکښل چي د عبدالله نومي شاعر کوم دېوان چي د استاد وکيلي په کتابخانه کي پروت دئ، د هغه ډېر منظومات د هندي سبک د پيرو شاعر عبدالله پوپلزي دي.

ښاغلي هيوادمل صاحب ليکلي دي چي موږ يوازي د وکيل الدوله د پښتو شاعرۍ دوې غزلي په لاس کي لرو. له دغه صراحته دا معلومېږي هغه دېوان چي قلمي نسخه ئې د اروانباد وکيلي صاحب په کتابخانه کي موجوده ده، او هغه مرحوم ئې وکيل الدوله عبدالله خان دېوان بېګي ته منسوبوي، د وکيل الدوله نه بلکي د عبدالله پوپلزي ده.

زما په فکر دغه پېښه د نامه له اشتراکه سرچينه اخلي، ځکه عبدالله محزون د خپلو غزلو په مقطعاتو کي يوازي د عبدالله په نامه بسنه کوي، خو ندرتاً د خپل نامه سره د محزون او پوپلزي پسوندونه هم يو ځای کوي، چي يو ئې د تخلص په توګه او بل ئې قبيلوي اړيکی

بیانوي. زه داسي فکر کوم چي ارواښاد وکیلي صاحب د دغه عبدالله نومي شاعر چي د دېوان قلمي نسخه ئې د دوی په کتابخانه کي محفوظ ده دغو نکتو ته پام سوی نه دئ او یا به پر پېښ سوی نه وي. په هر صورت په یوه نامه د دوو بېلابېلو شاعرانو په باب دغه ډول پېښي زموږ په ادبي تاریخي کي ډېري تر سترګو کېږي، خو دقیق او کوټلي تحقیقات او څېړني کولای سي دغه ډول سهوي او غلطۍ اصلاح کړي.

په دې باب وروستۍ د یادوني وړ خبره دا ده چي موږ د عبدالله محزون پوپلزي د دېوان یوه بله نسخه هم لرو، چي د ارواښاد استاد عزیز الدین وکیلي په کتابخانه کي ساتلې ده. دا چي اوس مهال به نوموړې نسخه په څه سرنوشت اخته وي معلومه نه ده.

## د محزون د دېوان منتخبات:

د عبدالله محزون پوپلزي د دېوان منتخبات په بېلابېلو کتابونو، مجلو او اخبارونو کي چاپ سوي دي. لومړی سړی چي عبدالله پوپلزی ئې په لنډ ډول په موږ وپېژاند او د کلام نمونه ئې خپره کړه لوی استاد علامه حبیبي وو. لوی استاد په تاریخچهٔ شعر پښتو کي په لومړی وار عبدالله پوپلزی معرفي کړ او یو غزل او دوه بیته ئې د کلام نمونه ورسره راوړه. تر دې وروسته د پښتانه شعراء د دوهم ټوک ارواښاد مؤلف د محزون دوې غزلي، د حمید پر نیرنګ عشق د تقریظ څو بیتونه، او د حمید پر غزل یو بشپړ مخمس په خپل کتاب کي انتخاب کړل. ارواښاد استاد خادم (۱۳۵۸ش مړ) په روهي ګلونه کي د محزون څو غزلي او بیتونه انتخاب او چاپ کړل. په افغانستان نومي اثر کي د عبدالله محزون یوه غزل چاپ سوېده. د آریانا دائرة المعارف په شپږم ټوک کي ئې هم یوه غزل انتخاب سوېده. د کندهار مجلې او طلوع افغان په بېلابېلو ګڼو کي په بېلابېلو وختونو کي ځیني غزلي او بیتونه انتخاب او چاپ سوي دي.

د استاد هیوادمل صاحب د پښتو ادب په تاریخ کي د عبدالله محزون د مخمس یو بند انتخاب سوی او چاپ سوی دئ. کېدای سي ځیني نور داسي کتابونه هم وي چي د محزون د کلام انتخابات پکښې چاپ سوي وي خو زه پر پېښ سوی نه یم.

پورته کوچنۍ لیکنه د حاضري غونډي له پاره په ډېر تلوار سربښته سوې ده. که نه د دې دېوان په باب ډېر نور جزئیات سته چي باید په دې لیکنه کي داخل سوي وای. که خدای ما ته توفیق راکړ او د عبدالله محزون د دېوان چاپ مي په نصیب سو، هغه مهال به د دغه دېوان بشپړه پېژندنه د ټولو جزئیاتو سره د دېوان په سر کي چاپ کړم، انشاء الله تعالی.

لیکوال: څېړندوی رفیع الله نیازی/کابل

# د عبدالله پوپلزي او حنان بارکزي
# د ژوند او شاعرۍ پرتلیز جاج

تر دې دمه په پښتو شاعرۍ کې د هندي سبک د یوه پیرو شاعر عبدالله محزون پوپلزي دېوان لا نه دئ چاپ شوی، همدغه وجه ده، چې د شاعرۍ د ځانګړنو، مزایاوو او نیمګړتیاوو په اړه ئې په پښتو ادب کې ډېر لږ څه موندل کېږي، خو بل لور ته د هندي سبک د یوه بل مخکښ شاعر حنان بارکزي د دیوان پر چاپ سربېره د هغه د شاعرۍ په خوږلنیو، نازکیو، لفظي او معنوي ښکلاوو او ان د هندي سبک له نورو پیروو شاعرانو سره د هغه د شاعرۍ د پرتلني په برخه کې د پام وړ کار شوی دئ. حنان بارکزی له حمید مومند، کاظم خان شیدا او د هندي سبک له نورو شاعرانو سره پرتله شوی او پر شاعرۍ او ژوند ئې خبري شوي دي.

په دې لیکنه کې ما د عبدالله پوپلزي په اړه د تر لاسه کړو معلوماتو او د ده د څو محدودو لاسته راغلو شعرونو په رڼا کي له عبدالحنان بارکزي سره د ده ژوند، شاعري او لږ ودېر د دواړو د شاعرۍ ځانګړني پرتله کړي، چې پیل ئې د دواړو له زوکړي کوو:

موږ د حنان بارکزي د زوکړي او مړیني کره نېټې په لاس کې نه لرو، یوازې د ځینو څېړونکو د څېړنو له مخې راته داسې څرګنده شوې، چې "میرزا حنان بارکزی له ۱۲۳۰ هـ ق نه وړاندې د کندهار جنوب ته د ډنډ ولسوالۍ په مرت کلا کې زېږېدلی او د ۱۲۹۵ هـ ق په شاوخوا کې وفات شوی او په خپل کلي مرت کلا کې خاورو ته سپارل شوی[1]" او "عبدالله پوپلزی په ۱۲۶۰ هـ ق کال د کندهار په بلدی کې زېږېدلی او په ۱۳۳۳ هـ کال وفات شوی دئ[2]". پر پښتانه شعراء سربېره، د پښتو ادبیاتو تاریخ لرغوني او منځني دوره او ځینو نورو اثارو کې د عبدالله محزون پوپلزي د زوکړي نېټه ۱۲۶۰ هـ ق ښوول شوې، خو استاد علامه حبیبي د خپل اثر تاریخچه سبکهای اشعار پښتو په ۱۰۳ مخ کې د حاجي عبدالله محزون د زوکړي نېټه ۱۲۵۷ هـ لیکلې ده. نو د پیدا ښت د نېټو پر اساس حنان بارکزی شاوخوا ۳۰ کاله له عبدالله پوپلزي مشر دئ، خو دواړه د یوې سیمي یعني د کندهار اوسېدونکي ول. حنان بارکزي په دقیق ډول نه، خو شاوخوا ۶۵ کال او عبدالله

محزون پوپلزي په دقيق ډول ۷۳ کال ژوند کړی دئ. عبدالله پوپلزي او حنان بارکزي دواړو په پښتو او دري ژبه شاعري کړې ده. عبدالله پوپلزی په پښتو او دري ژبو کي صاحب دېوان شاعر تېر شوی، پر دېوانونو سربېره یوه د عبرت نامې مثنوي بله هم اخلاقي مثنوي لري او "د حنان بارکزي پښتو دېوان شاوخوا څلور زره اشعار لري، د فارسي یو ناچاپ اثر ئې له سعید ګوهر سره خوندي دئ او د کیسو یوه مجموعه ئې له محمد نسیم نوري کندهاري سره شته، مرزا حنان پر پښتو او فارسي سربېره په عربي هم پوهېده[۳]". د حنان بارکزي دېوان په ۱۳۳۶ هل کال په کابل کي د پښتو ټولنې له لوري چاپ شوی بیا د استاد محمد معصوم هوتک په زیار او درېیم ځل هم په کوټه کي چاپ شوی او د عبدالله پوپلزي پښتو دېوان د افغانستان په ملي ارشیف کي خوندي دئ، خو له نېکه مرغه چې د دغه دیوان کاپي د ښاغلي روهیال صاحب په زیار چاپ ته چمتو شوې، که خدای کول ژر به چاپ شي. د هر انسان د شاعری د استعداد په رشد او غوړېدو او د هنري رنګینیو لوړو پوړو ته په رسېدو کي د ځینو اشخاصو، ټولنو او چاپېریال اغېز، ممیزات او خواږه پراته وي. په دې لیکنه کي زموږ تر بحث لاندې د دوو کندهاري شاعرانو، عبدالله پوپلزي او د حنان بارکزي ژوند او شاعري هم د خپل عصر له حالاتو، چاپېریال، اشخاصو او فرهنګي بنسټونو څخه په بشپړه توګه اغېزمنه او مالامله ښکاري. د دغو دواړو شاعرانو د شاعری په لېمو او اننګو کي د کندهار د ادبستان سرخي او زرغوني له ورایه ځرګندېږي، نو بې ځایه به نه وي چې دلته لږ کوټې پر دغه ادبستان هم تم شو.

**د کندهار ادبستان:**

په اصل کي دا د هوتکي پښتنو فرهنګپالو واکمنو او په ځانګړي ډول د شاحسین هوتک نوښت او ابتکار وو چې په تاریخي لحاظ ئې په دې سیمه یعني کندهار کي د فرهنګي ادبي ټولنو د بنسټ ډبره ایښې، له هوتکیانو وروسته نادر افشار د دغي فرهنګي ټولني منسجمي هڅي شنډي کړې، خو د هوتکو په دربار کي روزل شوو پښتنو فرهنګپالو دغه بله شوې ډېوه ان د ستر ټولواک احمد شاه ابدالي (رحمه الله علیه) تر واکمنی پوري بله وساتله او بیا احمدشاه بابا چې پخپله هم پر خپل وخت د پښتو ژبي د فرهنګي قافلې مخکښ وو د هوتکو په دربار کي بله شوې فرهنګي ډېوه نه یوازي تتېډو ته پرېنښوده، بلکي داسي ئې چراغان کړه، چې رڼا او پلوشې ئې په ټوله احمدشاهي امپراتوری کي خورې ورې شوې. تر احمدشاه بابا وروسته د هغه د اولادې د واکمنی پر مهال یو بل پښتون فرهنګپال راولاړېږي او د تاریخي رسالت له مخي د خپلو نیکونو پر پله پل ږدي او د کندهار ادبستان جوړوي. "د کندهار ادبستان د دیارلسمې هجري پېړی په دوهمه نیمایي کي جوړ شوی وو. دغه وخت سره له دې چې کندهار او د افغانستان نوري سیمي د سردارانو د اختلافاتو په وجه نا ارامي وې، خو په کندهار کي د فرهنګي فعالیتونو هڅه هم موجوده وه، سردار مهردل خان مشرقي او د هغه وخت نورو شاعرانو غونډي سره درلودې؛ ادبي مجالس ئې دایرول او د کندهار ادبستان ئې تاسیس کړی وو[۴]". خو دا ځل دا فرهنګي هڅه په دربار نه بلکي د کندهاري ورونو له ډلي د سردار مهردل

مشرقي په کور کې پیل شوه، د ده کور د ادبي بنډارونو مرکز وو او د هغه مهال شاعران او لیکوالان به ورته راټولېدل. د کندهار ادبستان له وخت او زمان سره د بېلابېلو پښتني شاعرانو او لیکوالو پالنځی او روزنځی پاته شوی، ځینو څېړونکو میرزا حنان بارکزی، صدیق اخونزاده هوتک، سردار غلام محمد خان طرزی، ملا محمد اکرم هوتک، ملا صالح محمد داوی، عبیدالله هوتک او عبدالله پوپلزی د کندهار د ادبستان غړي یاد کړي دي. "د کندهار د ادبستان بل لوی عالم علامه حبیب الله کاکړ دئ، چې په پښتو، فارسي او عربي ژبو کې ئې د علومو په بېلابېلو برخو کې نهه ویشت کتابونه لیکلي، له سردار مهردل خان مشرقي سره ئې نژدې اړیکي درلودې او د هغه په غوښتنه ئې د نقدالثقات في نزیف الموضوعات په نوم په څلوېښت بابه کې د موضوعه احادیثو پر تخریج یو کتاب هم لیکلی دئ[۵]". همدا راز زموږ څېړونکو ملا میران هم د دغه ادبستان په غړو کې شمېرلی دئ. د کندهار ادبستان که هر څومره غړي او ملګري درلودل، خو زموږ تر بحث لاندې شاعران حنان بارکزی او عبدالله پوپلزی ئې د پیل او پای دوه مهم او وتلي غړي ول. حنان بارکزی د سردار مهر دل مشرقي له ډېرو نږدې ملګرو او دوستانو څخه وو او د هغه پر مړینه ئې یوه مرثیه هم ویلې ده، چې د پیل او پای بیتونه ئې په دې ډول دي:

وجـــوار تـــه د مـــولی سردار قـــرین ولاړ
چـــې مرغـوب د کـــل عـــالم و پــه تحسین ولاړ
اعـــتماد بانـــدې د کـــړو نـــه دئ حنانـــه
چې سردار مهر دل خان له دې دنیا یقین ولاړ[۶]

عبدالله محزون پوپلزی که څه هم تر حنان بارکزي نږدې شاوخوا دېرش کاله کشر وو، خو بیا ئې هم همعصره وو او د کندهار د ادبستان د بنسټ ایښودونکي سردار مهردل خان مشرقي د مړینې پر مهال یعنې په ۱۲۷۱ هـ کال د یوولسو کالو وو، نو داسې ښکاري، چې له مشرقي سره به ئې لیدلی نه وي. له حنان بارکزي سره ئې د لیدو کتو په اړه دقیق لاسوندونه نه لرو، ښایي د عبدالله محزون د دېوان د اشعارو له بشپړې مطالعې او شنني څخه دا ښه ترا جوته شي، خو لږ تر لږه د ځینو قراینو له مخې دا ویلای شو، چې حنان بارکزی او عبدالله پوپلزی دواړه سره د نژدې یعنې د یوې سیمې اوسېدونکي ول، دواړه شاعران ول، په یوه وخت کې ئې ژوند کاوه، دواړه د هندي سبک پیروان ول او څېړونکو دواړه د کندهار د ادبستان د پیل او پای غړي ښودلي دي، نو په یقیني ډول دواړو به سره په ژوندانه کتلي وي، د ادبستان په ادبي بنډارونو کې به یو د بل اشعار اورېدلي وي او راشه درشه به ئې هم سره درلوده، ځکه چې هغه مهال لیکوال او شاعران محدود ول، نو په یوه سیمه کې د لږ و یا د ګوتو په شمېر شاعرانو تر منځ به ارو مرو پېژندګلوي او راشه درشه وه. د کندهار د ادبستان د غړو شاعرانو او د عبدالله محزون پوپلزي او حنان بارکزي د شاعرۍ بله سره ورته وجه دا ده، چې دوی په پښتو شاعرۍ کې د هندي سبک پیروان دي، نو په کار ده، چې په دې سبک کې هم د دغو دواړو شاعرانو ځای او شاعري لږ و ډېره تر څېړنې لاندې ونیسو:

## هندي سبک:

د هندي سبک د پس منظر او ځانګړنو په اړه څېړونکو او پوهانو ډېري لیکني کړي،

زه نه غواړم په دې اړه څه ووایم، خو له موضوع سره په تړاو دومره ویلای شم، چې په پښتو شاعرۍ کې د هندي سبک پیروي په یوولسمه پېړۍ کې پیل شوې او په پښتو ژبه کې د دې سبک سرلاری د پېښور د ماشوګګر سیمې اوسېدونکی عبدالحمید مومند او کاظم خان شیدا دي، چې د حمید مومند په خپل ژوند او د هغه له ژونده وروسته په بېلابېلو پښتني سیمو کې ځینو پښتنو شاعرانو ئې پر پله پل ایښی او تر اوسه پورې په پښتو ژبه کې ځیني شاعران دغه سبک خوښوي او پالي ئې. "کله چې سړی په پښتو ادبیاتو کې د هندي سبک پر اثراتو بحث کوي، نو ورته ښکاري، چې په پښتو کې د دغه سبک په پیروۍ شاعري په پښتونخوا کې پیل شوه، په هند کې اوسېدلو ځینو پښتنو شاعرانو معراج ته ورسوله، په کندهار کې ئې وده وکړه او اغېزو ئې تر معاصرې دورې پورې پایښت وموند(۷)". که مبالغه و نه کړو، نو د سردار مهردل خان مشرقي په ګډون د کندهار د ادبستان ګرده شاعران د هندي سبک پیروان او په ځانګړي ډول په شاعرۍ کې د عبدالحمید مومند عقیدتمندان تېر شوي، چې په دې ډله کې حنان بارکزی او عبدالله پوپلزی هم شامل دي. د حنان بارکزي په اشعارو کې په پراخه کچه د حمید مومند پیروي تر سترګو کېږي یعني په یقیني ډول د هندي سبک په اډانه کې د حمید مومند د مکتب پیاوړی شاعر دئ. د عبدالله پوپلزي ټوله شاعري موږ نه ده لوستې، خو څه چې په لاس کې لرو له هغې راڅرګندېږي، چې د حمید مومند پیرو دي. د دې خبرې یو بل ثبوت دا دئ چې" ملا محمد اکرم له ۱۲۰۰ هـ کال نه وروسته په قندهار کې ژوند کاوه، زبردست عالم وو او دی د عبدالله محزون استاد هم، ډېر ښه اشعار ئې درلودل او د حمید د سبک پیرو وو(۸)" نو ویلای شو، چې عبدالله محزون به د خپل استاد ملا محمد اکرم له شاعرۍ څخه اغېزمن شوی وي او بل دا چې لوی استاد ارواښاد حبیبي هم عبدالله محزون پوپلزی د حمید په پیروانو کې شمېرلی دئ. دلته د بېلګو په توګه عبدالحمید مومند ته د دغو دواړو شاعرانو د ارادت په برخه کې د دوی د اشعارو ځیني بیتونه رااخلو:

حنان بارکزی وایي:

پیروي مې د حمید موشګاف وکړه
ما حنان د شعر لاس کړ د رحمان مات(۹)
د حمید د شعر بحر ته حنانه
یو څو څاڅکي دي لوېدلي ستا ابیات(۱۰)
د حیمد د خوش نظمۍ په زراعت کې
دا حنان ئې دئ د شعر خوشه چین(۱۱)

عبدالله محزون پوپلزی وایي:

د عزیز و د شاهد په ښه اهنګ
د کتاب نوم ئې پرې ایښی و نیرنګ
ناسفته در ئې پېیلي و په برید
افرین پر پښتانه عبدالحمید(۱۲)

بل ځای وایي:

عالیقدره باهمته شاعري وه
د پښتو په ملک کې پاکه نادري وه
سخندان د شاعرانو پښتنو وه
پارسیان به ورته تل پر زنګنو وه
دی پادشاه و په اقلیم د سخندانو
خبردار و له مذهبه د رندانو
شاعران ئې تر دې عصره خوشه چین دي
لکه ستوري چې مغلوبه د پروین دي
دی اسمان غوندې بلند په مرتبه کې

دا نـور مځکـي غونـدي پـست پـه مرتبـه کـي
معلــوميږي چــي راهــبر و هــم رهــبر و
چـي ئـې خـاوري د پـښتو پـه نـرخ د در و[۱۳]

بل ځای وايي:

عبدالله محزونه ژاړې ولي خوشي بې تمهيده
خدای خبر چي به ودرېږي دا ژړا د يار بې ديده
د همت ملا دې بسته کړه لاس مه کاږه له دې خريده
که يار غواړې همره ژاړه څو درځي عبدالحميده
دا په دا چي درمونده شي په درياب نه په وياله کي[۱۴]

که د هندي سبک د پيروانو شاعرانو شاعري مطالعه شي، نو له ورايه څرګندېږي، چي د دغه سبک نږدې ټولي ځانګړني لري او د دې سبک ډېرو شاعرانو هڅه کړې، چي د حميد او د شيدا په پيروی يا تقليد څه ووايي. دلته به موږ د حنان بارکزي او د عبدالله محزون د شاعری هغه څه راواخلو چي دوی دواړو ورته په خپله شاعری کي ځای ورکړی دي. حنان بارکزی په پښتو ژبه کي له حميد مومند سره سيالي ناشونې ګڼي، ځکه خو وايي، چي:

جلــب ونيـــسه حنانـــه کلـــه کېـــږي
پـــه پـــښتو کـــي لـــه حميـــد سره جګـــړې[۱۵]

عبدالله پوپلزی تر حنان بارکزي هم وړاندې ځي حميد مومند او حنان بارکزي دواړو ته درناوی لري او له دوی سره له سيالي کولو څخه ځان منعه کوي ، لکه دی وايي :

د حميــد و د حنانــه ســيالي مــه کــړه
عبـدالله ښـايي چـي کـې د نـورو سر مـات[۱۶]

حنان بارکزي او عبدالله محزون دواړو د عبدالحميد مومند د شعرونو په تقليد يا په ورته معنا او قافيه کي شعرونه هم ويلي، چي دلته ئې يوازې يوه يوه بېلګه را اخلو :

حميد مومند وايي:

الهــــي د محبــــت ســــوز و گــــداز را
پــــه دا اور کــــي د ســــهي ســــمندر ســــاز را[۱۷]

د حميد مومند د همدغه حمديه کلام په پيروی حنان بارکزی وايي:

الهــــي د محبــــت پــــه اور کــــي تــــوان را
ســــمندر رنګــــه د پټــــي خــــولې بيــــان را[۱۸]

او عبدالله پوپلزی بيا داسي وايي :

خدايــه عــشق پــه ذوق و شــوق د دلربــا را
هــم لــه دوی څــه شــفقت مهــر وفــا را[۱۹]

په پای کي ويلای شو، چي عبدالله محزون پوپلزی د کندهار د ادبستان له هغو وروستنيو شاعرانو څخه وو، چي د دغه ادبستان د سرلارو په پيروي ئې د عبدالحميد مومند پر شعري سبک برابره خوندروه شاعري کړې او که د عبدالله محزون پوپلزي ټوله شاعري ولوستل او وڅېړل شي، نو ښايي پر حنان بارکزي سربېره د هندي سبک د نورو پيروو شاعرانو او په ځانګړې ډول د کندهار د ادبستان د نورو شاعرانو له فکره هم اغېزمن شوی وي. په دې هيله چي د عبدالله محزون پوپلزي دېوان چاپ، د پښتو ادب مينه والو ته ورسېږي او پر ژوند او شاعری ئې هر اړخيزي څېړني وشي.

## اخځليکونه:


۱. تابان، لياقت: د شيدا او حنان پرتليز جاج، ملګري ليکوال کوټه، صحاف نشراتي موسسه – کوټه، ۱۳۸۶ هـ ل، ۵۰–۴۹ مخونه.

۲. رښتين، صديق الله: پښتانه شعرا، دوهم ټوک، ترتيب، تصحيح او زياتوني د مطيع الله روهيال، علامه رشاد خپرندويه ټولنه، کندهار –

افغانستان، دوهم چاپ، ۱۳۹۱ ل، ۵۷۸مخ.
۳. تابان، لیاقت: دشیدا او حنان پرتلیز جاج، ۴۹مخ.
۴. هیوادمل، زلمي، د پښتو ادبیاتو تاریخ، دانش خپرندویه ټولنه – پېښور، ۱۳۷۹هل، ۲۲۴مخ.
۵. باجوړی، بریالی: د لوی احمد شاه بابا یاد، د پښتو ادبیاتو په وده کې د کندهار د ادبستان اغېزه، د محقق سید محي الدین هاشمي په زیار، د افغانستان د علومو اکاډمي، د پښتو څېړنو نړیوال مرکز، ازادی مطبعه کابل، ۱۳۸۲هل، ۲۴۲مخ.
٦. د میرزا حنان بارکزي دېوان، د محمد معصوم هوتک په زیار، صحاف نشراتي موسسه – کوټه، ۱۳۸۸هل، ۴۶مخ.
۷. هیوادمل، زلمي، د پښتو ادبیاتو تاریخ، ۲۱۶مخ.
۸. حبیبي، عبدالحی: تاریخچه سبکهای اشعار پښتو، علامه رشاد خپرندویه ټولنه کندهار – افغانستان، دوهم چاپ، ۱۳۹۰هل، ۱۰۳مخ.
۹. د میرزا حنان بارکزي دېوان، ۴۶ مخ.
۱۰. پورتنی اثر، ۴۵مخ.
۱۱. پورتنی اثر، ۹۷مخ.
۱۲. پښتانه شعراء، دوهم ټوک، دوهم چاپ، ۵۷۹مخ.
۱۳. پورتنی اثر، ۵۷۹مخ.
۱۴. هماغه اثر، ۵۸۱مخ.
۱۵. د میرزا حنان بارکزي دېوان، ۱۶۳ مخ.
۱٦. د عبدالله محزون ناچاپ دېوان.
۱۷. د عبدالحمید مومند کلیات، اوډون او ویېپانګه د محمد اصف صمیم، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۳هل، ۱مخ.
۱۸. د میرزا حنان بارکزي دېوان، ۳۵ مخ.
۱۹. د عبدالله محزون ناچاپ دیوان.

***

د ح. رزمي ټولونه:

## ګل خبري

- د ضایع سوي وخت په خاطر پښېماني لا نوره هم د وخت ضیاع ده.
- که ته د خپل ځان سره مینه و نه لرې، بل چا ته هم مینه نه سې ورکولای.
- باور د مینې ډېر پیاوړی ثبوت دئ.
- حتي که ډېر ښایسته انسان په غوسه سي لا هم بد ایسي.

***

څېړندوی عبدالرحمن حبيب زوی / کابل

# عبدالله پوپلزی
# د هندي سبک نوښتګر شاعر

هندي سبک د هغو شعري منځپانګيزو ځانګړنو ټولګه ده، چې په افغانستان او پښتونخوا کې د يوولسمي پېړۍ په شاوخوا کې لاره پيدا کړې ده[1]. په پښتو ادبياتو کې ئې لومړنی مخکښ شاعر حميد مومند دئ. حميد مومند هندي سبک په هغه ډول پلی نه کړ، لکه څنګه چې وو، بلکي د پښتو هڅنديو کي ئې واوډه او هندي سبک ته ئې جلا جامې ورواغوستې. دغه هندي سبک هغو فارسي شاعرانو ته منسوب دئ، چې د هند په مغولي دربار کې ئې شاعري کوله.

د هندي سبک په اړه ښاغلی صديق روهي ليکي: «هندي سبک په ناڅاپه او تصادفي توګه نه دئ ايجاد شوی، بلکي د ځينو ادبپوهانو په عقيده هندي سبک د عصر روح دئ، د هندي سبک لومړۍ ښېلګي د هرات د تېموريانو په دوره کي ليدل کېږي او ځيني نښې ئې د غزنويانو په دروه کي هم موندلی شو. هند د هندي سبک د روزني له پاره تر ټولو مناسب ځای ثابت شو. دا وخت چې هندي سبک غوړېږي، په افغانستان کي تيموري دولت سقوط کړی وو. په ايران کي د روحانيونو د حکومت له تعصب نه ډک چلند يو زيات شمېر شاعران مجبور کړل، چې هند ته مهاجرت وکړي. د ملک الشعراء بهار په قول د دهلي دربار د اصفهان له دربار نه فارسي شعر ته زيات خدمت وکړ. دا د تاريخ ظرافت وو، چې د ايران په دربار کي صفوي پاچهانو او درباريانو په ترکي ژبه خبري کولې او د دې په خلاف په مغلي دربار کي د ترکي پر ځای په فارسي ژبه خبري کېدې[2]».

څېړنپوه زلمی هېوادمل په خپل کتاب پښتو ادبياتو تاريخ کي د هندي سبک پېلامه په پښتونخوا او د معراج لامل ئې په هند کي مېشت پښتانه ګڼي او د غوړېدو سيمه ئې کندهار يادوي. نوموړی استاد زياتوي، چې د کندهار ادبستان د دې سبک د پاللو يوازنۍ مدرسه وه او په کندهار کي ئې د دغه سبک په خپرېدو کي ستره برخه درلوده.

په پښتو کي د هندي سبک پلويان او لارويان خورا ډېر دي لکه «حسين، قلندر اکوزی يوسفزی، خانګل خليل، صمد، کامګار خټک، دوست محمد، فضيل، علي خان مامنزی، حمدالله کاکا خېل، سليم، شمشېر، مياخان، ميامحمدي صاحب زاده، خوږدل، خادم شاه کاکاخېل، بېدل هشنغری، کاظم خان شېدا، مير عبدالله، نورمحمد نوري، غلام جان، مرزا حنان بارکزی، صديق

اخوندزاده، سردار غلام محمد طرزی، ملامحمد اکرم هوتک، ملاحسن ساکزی، ملا صالح محمد داوی، اسلم لوڼ، عبیدالله هوتک او عبدالله پوپلزی».

عبدالله پوپلزی، چي زموږ د دې لیکني ار موخه ده، په اړه ئې پښتانه شعرا دویم ټوک لیکي: "عبدالله پوپلزی د کندهار په ښلدي کلي کي زېږېدلی دئ. ده په پښتو او فارسي کي د شعر ویلو طبع لرله. په دواړو ژبو کي دېوانونه لري. برسېره یوه مثنوي د اخلاقو په بیان کي او بله مثنوي، چي (عبرت نامه) نومېږي له ده نه یادګار پاته شوې ده. د ده اشعار عموماً عشقي او اخلاقي دي. دی په ۱۲۶۰هـ کي زېږېدلی او په ۱۳۳۳هـ کي وفات شوی دئ. ده د پښتو زیات پخوانې شاعران یاد کړي دي او د هغوی یادولو ته ئې په خپل دېوان کي برخه ورکړې ده[۳].

عبدالله پوپلزي په هندي سبک کي د کاظم خان شیدا او د فارسي ادبیاتو بیدل په څېر نه دئ تللی، بلکي نوموړي د حمید مومند او فارسي شاعرانو لکه کلیم او صایب په څېر شاعري کړې ده.

رابه شو د کاظم خان شېدا شعر ته، چې د نازکخیالی پولي ئې تر کومه بریده دي:

سرکشان وي مسخر د خاکسارانو
زمین بوس دی ساحل توپان د موج
په ذلت کي مي عزت د ارتقاع دئ
که مي څوک لکه غبار وهي په لته

بېدل بیا څنګه نازکخیالي کوي:

به اوج اگهیت نردبان نمی خواهد
نگاه تا مژه بر خاسته است بر فلک است

خو حمید مومند، صایب او کلیم بیا کومه لاره غوره کړې ده:

هسي زه ستا د قامت په خیال تکیه کړم
هر نفس لکه موسی کړه په عصا
څه به اور په هغو نه لګي حمیده
چي غوږ باسي تر اور ګرمه وینا ستا

صایب:

مگر به سر مه اثر کرد ضعف طالع من
که بی عصا نتواند به چشم یار رسید

کلیم څه وایي:

از هنر حال خرابم نشد اصلاح پذیر
همچو ویرانه که از گنج خود اباد نشد

عبدالله پوپلزی څنګه د هندي سبک په باریکیو پسي ځي:

د زړه غوښې پرېکوم د خیال په توره
د خپل زړه د کنبل قصاب یم نه یم ګرم
و بوسې ته ئې د لبو تل پخېږم
لکه موم په نږدیکت د اور ویلېږم

یا:

شاپېریاني ستا د حسن دلالي کړي
د جفا ګام ږده پر موږ غریبان ورو ورو

د عبدالله پوپلزي په شعرونو کي د هندي سبک ځیني ځانګړني په لاندي توګه دي:

۱. د عبدالله پوپلزي په اشعارو کي د هندي سبک لومړنی ځانګړنه یعني ابهام او پېچلتیا داسي مونډلای شو:

د وصال په دیدن لا سوزش ډېرېږي
پرهار لا په خلاصېدو ډېر آزرده سي
چي ئې ولیدم په سرو وینو لړلی
یخ د ژمي د خولو دي راته اوږ کی
د ماه رویو محبت د خار بستر دئ
تخت و تاج ئې همه واړه د دار سر دئ
نږدېکان د موم په شان په قرب ویلېږي
تا ځان ولي کی تېزچشمه تر سېماب

دا د یار د خــط پوځونه پر مــخ راغله
که فرنګ کی پر پوزه زموږ لښکر مات

څو باران دي د زړه مځـکه لــنده نه کي
په خـــالي اوریځي څـــه سي یا په باد
تن دي روغ او مـــال دي هـــم تر زرو
عشق محال دئ څو دا ټول نه کړې برباد

ستا د ســترګــو د ابرو دیدن خـراب کـړم
لب دي جوړ پسي پخته د سیخ کباب کړم
د حسرته خــــپلو اوښــکو پر سـر یووړم
مـحبت کټ مټ په مـثل د حـباب کـړم

## ۲. د تشبیهاتو او استعارو ژورتیا:

کوم افتاب دئ چي غر ویلي کي د لـیري
ستا تندي ګوره په تش دیدن سیماب کړم

دلته له ورایه د ښاغلي عبدالله پوپلزي هنري ورتیا څرګندېږي، چي شاعر هڅه کړې، څو ژوري او پخې تشبه ګاني وکاوري، داسي کلمې سره وپیيي، چي تشبیه او استعارې ئې بیا ځلي او زړې نه وي، بلکي په نوي مخبیګلو کي خپل پیغام لېږدوي. موږ افتاب یا لمر د تودوخي له پاره ډېر کاروو، دلته ده تندي له لمر سره تشبیه کړې، چي ګډه وجهه ئې ګردوالی او تودوالی او رڼوالی دئ، چي د ورین تندي له پاره د لمر ویی کارول ښه نوښت دئ، دلته بله خبره دا ده، چي د تندي د رڼوالي او تودوخي دومره غښتلی ځواک ئې ښوولی، چي نه یوازي شاعر ئې ویلي کړی، بلکي تر هغه لا زیات سیماب په څېر، چي یوه کمیاوي مایع ماده، چي نه ویلي وي او نه هم جامده، په لاس کي نیول ګران وي، په شعر کي د در، ګوهر، مرغلري او صدف کمیاوي توکیو ذکر دود دئ، خو د سیماب کلمه نوې ده.

و بوسې ته ئې د لـبو تل پخـېږم
لکه موم په نږدېکت د اور ویلېږم

دلته د موم کیماوي کلیمې کارونه هم نوی مضون دئ، د شونډو سوروالی د اور له سوروالي او تودوخي سره تشبیه کول، بیا ئې له کمیاوي موادو نه کار اخیستی، د شونډو نرمښت ئې له موم سره، چي یوه نرمه کمیاوي ماده ورته کړی او قرینه ئې نږدېوالی ښوولی، چې په نږدیوالي کي اوبه کېږي.

هنر نه راځي په کار چي بخت کوټه سي
ګـوره تېره تر بګـړی سي ښـــه پلـو

هنر له پګړی یا لونګی سره او بخت له ښه پلو سره ډېري په زړه پوري تشبیه ګاني دي، هغه ځکه چي زموږ په پښتني ټولنه کي بخت تل له ښځو سره تړلی بولي، وایي د دې ښځي قدم کور نېکمرغه کړ یا دا چي د دې ښځې قدم بدمرغه وو کور مو تباه او ژوند مو برباد شو، یا دا چي له واده وروسته د ځوان خاوند مړیني ته وایي، چي فلانۍ ناوې زما ځوان زوی وخوړ یا داسي نور. بخت خدایي ورکړه ده، خو هنر چي دلته له پګړی سره تشبیه شوی په ستړیو او زیارونو تر لاسه کېږي، وریا ئې څوک نه شي تر لاسه کولای، همدا شان په پښتني ټولنه د پګړی پر سر کول ځانته شرایط او زیار غواړي، تر هغه مهاله چي څوک د قوم مشر یا یو نوښت و نه کړي، د لونګی تړلو جرئت نه کوي.

دغه شعر ته ورته شعر خوشال خان هم ویلی، چي:

که طالع او هنر دواړه سره کېږدې
زه خوشال به په کي ونیسم هنر

خوشال خان چي د توري او مېړاني سړی وو، پر هنر ټينګار کوي او د نوموړي همدا هنر وو، چي اوس ئې نوم پر جهان خپور دئ، خو نوموړي دا هنر په ډېرو سترېو تر لاسه کړی دئ، بالاخره ئې د پګړۍ حق پر ځای او بابا ستاينوم ئې وګټه، خو رحمان بابا، چي يو معنوي او تصوفي انسان وو، په بخت ئې ملا تړلې وايي، چي:

عقل مه غواړه طالع غواړه رحمانه
عقل مند د طالع مندو نوکران دي

د پوپلزي دا بل بيت:

تن رباب زړه مي شهباز ساز مي رګونه
باري څه کړم په مجلس کي لا ناباب

دلته تن له باب سره، چي ځنګېدلی حالت لري تشبيه شوی او زړه له شهباز سره، شهباز د رباب هغه توکي ته وايي، چي د رباب تارونه پرې لګېږي او خوږ غږ ترې راوځي او دغه غږ او ساز ئې له رګونو سره جالبه تشبيه ده. د پوپلزي صاحب په لاندني شعر کي ښکلې مشبه او مشبه به په لاس راځي:

بیا د کوم ګلرخ د لبو په هوس
ارزان پرولې دُر د اوښکو لکه خس

دُر د اوښکو ترکيبي تشبيه ده او مشترکه وجه ئې ګرانوالی او لوړ قيمت دئ.

۳. د هندي سبک درېيمه ځانګړنه، په شعر کي د ادبي بديعي صنايو (تقابل، مراعات النظير، مدعا مثل او حسن تعليل) کارونه ده. عبدالله پوپلزي هم دغې ځانګړني ته پام کړی، چي د څو بېلګو په يادونه ئې بسنه کوو.

**الف : تقابل:**

د وصـــال په تمنا يم کـــړې ســـترګي
يا نصيب چي به هجران سي راڅخه بس

شيخ و شاب پر مستي راسي هـم بې پايه
پښې ئې يو تر بل جاروزي مست بې بنګ

پـر څـه بـه راتـه وواپـې ناصـحه د ښـو بـدو
د هيچا په خيال نه ورځم که هر څو شست و شو کړم

نه مو لار ځني چپېږي نه مو لـيکه
په څو پښته راتېر سوي تر بابا دي

څو به وړم دا د هجران اور په سينه کي
نور و نار په واســطه سره آشـــنا دي

**ب : حسن تعليل:**

په شعر کي هغو ځانګړنو ته ويل کېږي، چي د قناعت وړ لاسوند د يوې فرضيې يا يوې دعوې له پاره راوړل شي، خو دا لاسوند به علمي او لاسونديز نه وي، بلکي پر تشبيه به ولاړ وي،چي تشبيه خپله په ار کي په دروغو ولاړه ده[۴].

آرام زړه په عشق کي نســـته ســـر تر سره
خوب محال پر هغه مځکه چي توده سي
د وصال په ديدن لا ســـــوزش ډېرېږي
پرهـــار لا په خلاصــېدو ډېر آزرده سي

دلته موږ وينو، چي شاعر د خپلو دعوو د اثبات له پاره څومره وړ او پر تشبيهاتو ولاړ دليلونه راوړي دي. د عشق نا ارامي له تودې ځمکي سره تشبيه او پر توده ځمکه د خوب ناشونتيا او يا هم د وصال د ديدن سوزش له پاره د پرهار د خلاصېدو درد انځور وړاندي کول ښه لاسوندونه دي. يا:

و بوسې ته ئې د لبو تل پخـېږم
لکه موم په نزدېکت د اور ويلېږم

د موم اور سره نږدېوالی، د بوسې او

شوېدو له تماسه پخېدل او د موم ویلي کېدل ډېري ښې بېلګې او ښه حسن تعلیل جوړېدی شي. یا:

ژړا مه کوه بې ځایه د نفس په مکر
لا تینګېږي هغه غوټه چي لنده شي

۴. په هندي سبک کي افراط، تفریط، اغراق، مبالغه او غلو کارول کېږي، چي عبدالله پوپلزي هم کارولي دي:

**الف: اغراق** (عقلي شوني وي، خو عادتي ناشوني وي):

د ماه رویو محبت د خار بستر دی
تخت و تاج یې همه واړه درد د سر دی

**ب: مبالغه** (عقل او عادتاً شوني وي):

قلم څه ولیکي خوار په ماته ژبه
ستا د حسن په تحریر شو دیوانه

**ج: غلو** (عقلاً او عادتاً شوني نه وي):

خود به ئې مخ ته ښاپیرۍ کرځي مخ پټي
چي ئې سترې په ارزو شمس و قمر دی

یا:

چي زما خون الوده سترګي ور واړوي
د خنجر له شرمه راسي تر ویني

همدا راز د عبدالله پوپلزي په اشعارو کي تلمیح هم ځای ځای راغلی دئ، د بېلګي په توګه:

بې منصوره دا انعام پر بل نه ښایي
هر ګردن نه دی لایق په دار د زولفو

هر چا څپل قسمت پوره کی ځني تېر شو
مستحق ئې و قارون او بل شداد

۵. د هندي سبک غزلیزه شاعري د مېني پر محور څرخي او موضوعي تیت او پرکتیا ډېره پکښې تر سترګو کېږي؛ دا هم د عبدالله پوپلزي یو مینه ییز غزل:

ښاپېریاني ستا د حسن دلالي کړي
د جفا ګام ږده پر مونږ غریبان وروورو
د زړه وینو مي د سترګو دورې سرې کړې
کشاده چي په خندا کې لبان ورو ورو
تصویر چي دې د سترګو د ابرو کړم
نادیده مي پر زړه څرخ شي مژګان ورو ورو
لاس پر سر کړه عبدالله د وخت د ښکلو
د رقیبه سره تل خندان ورو ورو

سرچینې:


۱. زلمی هېواد مل: د پښتو ادبیاتو تاریخ لومړی ټوک، دانش خپرندویه ټولنه، ۲۱۴، ۱۳۷۹مخ.
۲. محمد صدیق روهي: ایا حمید د هندي سبک پیرو وو؟ د عبدالحمید مومند یاد، (مقالو ټولګه) د پښتو څېړنو نړیوال مرکز، ۱۳۶۶، دولتي مطبعه، ۱۱ او ۱۲مخونه.
۳. پوهاند صدیق الله رښتین: پښتانه شعراء، دویم ټوک، بشپړ متن، ترتیب، تصحیح او زیاتونې د مطیع الله روهیال، علامه رشاد خپرندویه ټولنه، کندهار -افغانستان، ۱۳۹۱کال، ۵۷۸مخ.
۴. شمیسا، ډاکټر سیروس: نګاهي تازه به بدیع، چاپ چهاردهم، تهران، چاپخانه رامین، ۱۳۸۱، ۱۷۷مخ.


***

کاکا اسدالله پوپل

# نه هېرېدونکي ادیب او شاعر

د څېړنغونډو یا سیمینارونو د جوړولو لړۍ زموږ د ملي او فرهنګي شخصیتونو د پېژندنې له پاره یو ګټور او پر ځای کار ګڼل کېږي. که څه هم د علمي او فرهنګي شخصیتونو بشپړه پېژندنه ډېر زیار، کار او وخت ته ضرورت لري خو دغه څېړنغونډې زموږ د ځوان نسل د خبرتیا له پاره یو حتمي او پر ځای کار دئ.

د څېړنغونډو او سیمینارونو په برکت هر لیکوال کولای سي د خپل وخت د ادبي څېرو او د هغوی د آثارو د خوندي کولو په موخه هلې ځلې وکړي. د همدې هڅو په رڼا کې د پښتو ادبیاتو په تاریخ کې موږ ګڼ شمېر آثار لرو چې ځیني چاپ سوي او ځیني تر اوسه نه دي چاپ سوي.

فرهنګي ټولنې، سیمینارونه او ادبي غونډې د ادبیاتو په وده او پرمختګ کې زیاته ونډه لري.

زموږ د کندهار د لیکوالانو، ادیبانو او شعراوو په اړه د ځوان نسل پوره پوهې ته ضرورت لیدل کېږي دا ځکه چې کندهار د سترو لیکوالانو او شعراوو د روزنې او پالنې زانګو ده.

د کندهار علم او فرهنګ محققین او څېړونکي علامه فاضل حبیب الله آخندزاده کاکړ مشهور په حبو آخندزاده، لوی استاد علامه عبدالحی حبیبي، علامه بابا پوهاند عبدالشکور رشاد او لوی استاد ارواښاد عبدالرؤف بېنوا د هیواد د فرهنګ او ادب د تاریخ ویاړ د همدې خاورې د روزنې او پالنې له زانګو څخه راپورته سوي دي.

همدارنګه مولوي عبدالرؤف خاکي چې د سراج الاخبار[1] مؤسس وو، مولوي محمد سرور واصف د مولوي احمدجان تاجر الکوزي زوی چې د نوموړي اخبار محرر وو. مولوي عبدالواسع کاکړ، مولوي محمدرفیق حبیبي، کاندید اکاډمیسین محمدابراهیم عطایي، کاندید اکاډمیسین محمدانور نومیالی او نور د همدې ادب خېزه خاورې ادیبان او لیکوالان دي. دوی که څه هم وفات سوي دي خو د دوی آثارو دوی ژوندي ساتلي دي. تر دوی دمخه هم په کندهار کې ډېر پښتانه شاعران او ادیبان موجود ول خو دا چې لکه د نن زمانې په څېر د ادبي آثارو د خوندي کولو له پاره وسایل نه ول او نه هم چا دې مسئلې ته پوره پاملرنه کوله ځکه نو زموږ ډېر شاعران پخپلو سیمو کې محدود پاته سوي او بیا هېر سوي دي. خو موږ باید هڅه وکړو چه

---

[1] د سراج الاخبار لومړۍ ګڼه د ۱۳۲۳هجري لمریز کال د ذیقعدې پر پنځلسمه د پنجشنبې په ورځ خپره سوې ده.

خپل لیکوالان، ادیبان او شاعران له هېرېدو څخه وژغورو. نو لازمه ده چه نوي څېړونکي باید د پخوانیو زړو آثارو په مطالعه کولو سره خپل نظریات او څرګندوني وړاندي کړي.

اوس هم شکر دئ په دې لړۍ کي کندهاري محققین او څېړندویان ښاغلی ډاکټر عبدالرازق پالوال، دروند استاد محمدمعصوم هوتک، یاغي او مبتکر شاعر ښاغلی عبدالباري جهاني سته چي د دوی د څېړني پر بنسټ تر موږه غنیمت آثار رارسېدلي دي. دوی د خپلو علمي او فرهنګي څېړنو په نتیجه کي د خپلي ټولني په وړاندي د ستر ټولنیز رسالت په سر ته رسولو کي هلي ځلي کوي.

د تېروشاعرانو د یادبود په اړه نن موږ د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست په نوښت د عبدالله محزون پوپلزي د سلم تلین د لمانځنغونډي په موخه راټول سوي یو. که څه هم تېر کال باید د نوموړي سلیم تلین لمانځل سوی وای خو بیا هم باید خوښ واوسو چي د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ د محترم رئیس او ښاغلي مطیع الله روهیال د ګډو فرهنګي هلوځلو په لړ کي د دې ستر رسالت په رسولو کي پوره ونډه اخیستې ده.

**د اروابښاد عبدالله محزون ژوندلیک:**

اروابښاد عبدالله محزون پوپلزی د عطامحمد خان زوی د کندهار د اوسني ډنډ اولسوالۍ د بلدي په کلي کي په (۱۲۶۰) هجري قمري کال کي زېږېدلی دئ. ابتدایي تعلیمات ئې په کورني ډول کړي خو له اشعارو څخه ئې څرګندېږي چه د مطالعې او ورځنۍ تجربو په لرلو د ډېرو معلوماتو څښتن وو. ورځنۍ اړتیاوي ئې د کرکېلي او مالدارۍ له لاري پوره کولې. نوموړي په پښتو او فارسي ژبو کي د شعر ویلوطبع درلوده او په دواړو ژبو مُردف دېوانونه لري. د دې څخه علاوه ئې یو مثنوي د اخلاقو په بیان کي او بل مثنوي ئې چي (عبرتنامه) نومېږي د خپل ژوند د پېښو په اړه بیان کړي دي.

اروابښاد عبدالله محزون پوپلزي پورته آثار د شعر او ادب پتنګانو ته په میراث پرې ایښي دي. د اروابښاد عبدالله محزون پوپلزي اشعار عموماً عشقي، اخلاقي او تصوفي دي لکه چي نوموړي پخپل یو شعر کي ویلي دي:

په مذهب کښې ګاهي ګاهي اخلاقي یم
په مشرف کښې د صوفیانوملاقي یم
کتابونه مي د عشق یا د اخلاق دي
بخیلان مي په مذهب واړه طلاق دي

اروابښاد عبدالله محزون پوپلزي په خپلو اشعارو کي د عشقي، اخلاقي او تصوفي فلسفې څخه علاوه د تذکرې په توګه د پښتو زیات پخواني شاعران یاد کړي او د هغو یادولو ته ئې پخپل دېوان کي برخه ورکړې ده.

د محلي روایاتو پر بنسټ اروابښاد عبدالله محزون پوپلزی خواخوږی، پاک نفسه، بې غرضه، اخلاصمند، لوړهمته او د سخاوت څښتن شخص وو. نوموړي پخپل ژوند کي د ښه سلوک له امله د خپل کلي او ښار زاړه او واړه و خپلي خوا ته جلب کړي ول. په مجلسونو کي ئې تل پر نورو اثر لوېدی. د عمر په اوږدو کي ئې څو ځله د حرمینو شریفینو په لیدلو ځان مشرف کړی دئ.

اروابښاد حاجي عبدالله محزون پوپلزي په ۱۳۳۳هجري قمري کال د ۷۳ کالو په عمر له دې فاني نړۍ څخه سترګي پټي کړي دي.

اروابښاد محزون د پښتو او فارسي ژبي پیاوړی شاعر وو او په شعر کي ئې د هندي سبک پیروي کوله. د حمید مومند د اشعارو څخه متاثره وو. حمید مهمند تر ۱۱۰۰ هجري

قمري وروسته د پښتو په شعر او شاعرۍ کې يو بل نوی سبک جوړ کړ. د بل چا پيروي ئې و نه کړه بلکې د خپل سبک له پاره ئې نور خلک خپلې پيروۍ ته راوبلل. نوموړي د فارسي ادب ولوست مګر د ده په زمانه کې هندی سبک تر فارسي لوړ او عروج ته رسېدلی وو. ده هم د پښتو شعر په هندي سبک واړاوه او هغه څه ئې پکښې راوړه چې د فارسي شعر په هندي سبک کې درلوده ځکه نو د حميد مومند سبک ته موږ د پښتو هندي سبک ويلای سو.

خيال پروري، اغراق او مبالغه، د ادبي تلازماتو مراعت، د نادرو استعاراتو او تشبيهاتو راوړل په شعر کې د دې سبک عمده خاصيتونه دي.

تر ده وروسته نورو شاعرانو هم دا سبک وروزی. د حميد د سبک پيروان په کندهار کې ميرزاحنان بارکزی، مُلا ميران، حاجي عبدالله محزون پوپلزی او ملامحمداکرم چې د ۱۲۰۰ هجري قمري په شاوخوا کې په کندهار کې اوسېدی او د عبدالله محزون استاد وو. په کندهار کې د هندي سبک د پيروانو سره د ناستي پاستي ځای د هغه وخت د عالمانو او اديبانو د راغونډېدلو مرکز د سردار مهردل خان مشرقي کور وو چې ډېر وخت به عبدالله محزون هلته د هغوی سره ليدنه کتنه کوله. پر دې برسېره نوموړي د سردار رحمدل خان د زوی سردار غلام محمد خان طرزي افغان سره ډېره ليده کاته کول. اروابښاد عبدالله محزون ډېر وخت په کابل کې د نوموړي سردار بې الايشه خدمت وکړ.

د کلام نمونه ئې:

**په څه غم شوم مبتلا د زړه له لاسه**
**چې کمی نه کړي ژړا د زړه له لاسه**
**په سرو وينو کې د زړه غوټې وهمه**
**راته ملك شو كربلا د زړه له لاسه**
**په ظاهر كه سازوباز كوم له خلكو**
**په باطن كړم واويلا د زړه له لاسه**
**هر چې طفل په شرمېږي هغه كاندي**
**ځكه هسي شوم رسوا د زړه له لاسه**
**په هوس د هر ګلرُخ شم تر موم نرم**
**عزت پلورم بې بها د زړه له لاسه**
**د بابا تر منزله تېرشولې نيكه شوې**
**لاوئېږي عبدالله د زړه له لاسه**

اروابښاد عبدالله محزون له موسيقۍ سره هم مينه درلوده ځکه ځيني اشعار ئې د موسيقۍ پر اوزانو او مُقامونو برابر په بهار جانان او ګلزار سيداحمد کې راغونډ سوي او تر اوسه ئې هم د کندهار محلي سندرغاړي د موسيقۍ په پردو کې ږغوي.

د اروابښاد محزون پوپلزي دغه شعر چه د ملمع[1] په ادبي صنعت سينګار سوی ما په بهار جانان کې وليدی چې وايي:

**ته لعل دهن يې ته لعل دهن يې**
**دست من به دامن تو ګل د چمن يې**
**ګل پري ګلفامه سروقده ګل اندامه**
**حُسن دي سور اور لګوي زما روح په رفتن يې**
**دلبره نازنينه ماه جوبينه لب شېرينه**
**ای صنم در زلف تو ګير صاف مشك د خُتن يې**
**سر و مال بښندم صنم پر تا عبدالله هر دم**
**نه اخلې خبر د بيمار خوش مې په کُشتن يې**

---

(۱) ملمع: په لغت کې رنګ په رنګ کېدل دي په اصطلاح کې بيا و هغه حيوان ته ويل کېږي چې رنګ په رنګ خالونه ولري (مګسي حيوان).
خو په ادب کې بيا و هغه صنعت او کلام ته ويل کېږي چې شاعر خپل کلام په دوو يا څو ژبو وليکي.

همدارنګه اروانښاد عبدالله محزون پوپلزي پښتو اشعارو کي ادبي صنعتونو ته په پاملرنه د استعانې[۲] صنعت ته په لاندي مُخمس کي چي د حميد ماشوخېل پر غزل ئې ليکلی ځای ورکړی دئ:

ستوری بيا دنباله دار شو د اسمان په دنباله کي
آهو رم له آهو وخوړ مشك باران شو په تاله کي
که لمر مخ په نقاب ونغښت له حيا شو په ناله کي
خط پر مخ د صنم راغی که سپوږمی شوه په هاله کي
دا ئې غاښ په خوله کي زېب کا که ژاله شوه په لاله کي

د مجنون په شان تېرېږي د صحرا پر لندو ژرګو
تر ځګر مي ځکه وزي شنه نلان په درګو درګو
په کاته دي زخمي کړی يم پر دواړو ښتورګو
هسي سحروجادو کاندي په نظر د شهلا سترګو
نه ئې سيال په هندکي شته دئ نه ثاني په بنګاله کي

هغه دم چي له حيا د شبګيری په سبب رغښتي
ما هاله ځان له په خپله د خپل عمر کفن ښکستي
نور و نار شو سره وصل که ورځ که ځني تښتي
ما وې عين لکه ګل دئ د غنچې په لمن نغښتي
که مي کوت يو ګل اندام و پروت په سبز دوشاله کي

مګر زلفو زخمي کړی شې په زهرو د لړمو
چي نوشې پيالې سرشاره ډکي ډکي د زقومو
د هوا وزر دي څه شو چي ئې خلاص کړې له درمو
لکه ونښلي مرغی په شست د سلو لومو
هسي زه پرېشانو زلفوکښې ايستم په کشاله کي

لب دي خوند هم د شرابو کړ برهم هم د عنبو
دېوانه څه ادب غواړي ځغلي تل د بې ادبو
سمندر غوندي په اور کي مسخرې کي په لهبو
دا زما له غمه شين زړه پکښې پروت دئ خيال د لبو
هسي رنګ زېب و زينت کا لکه می په شنه پياله کي

تر وېښته ئې ډېر په عجز انتظار نری نری کړم
بېلتانه په هر سوراغ کي مېخ وهلی رڅ موږی کړم
ګوښي ګير يم په هر کنج کي ياره ستا غمو پېری کړم
سر تر پايه غم د هجر لکه نی سوری سوری کړم
ځکه يم مدام دا هسي رنګ په آه و په ناله کي

چي ئې وليده زړه وژړل هورې شو په هراس کي
ابته شو عمر واړه په دروغو په لباس کي
مګر سپور شو نن له مهره رقيب وينم په وسواس کي
يار د خيال پر توسن سپور شو د سم قد نېزه په لاس کي
د خط شنې زغري اغوستي ځي د جنګ په سلسله کي

باز له نازه سترګي توري کړې سر پټ لاندي تر شال که
بيا په ډېرو حيلو مخ راته ښکاره لکه هلال که
لمر ځان پټ که په اوريځ کي چي پيدا ئې ستاجمال که
خال و خط په ګلګون مخ کي د دلبرو دا مثال که
لکه پروت وي غزېدلی خرقه پوش په دوشاله کي

عبدالله محزونه ژاړې ولي خوشي بې تمهيده
خدای خبر چي به ودرېږي دا ژړا د يار بې ديده
د همت ملا دي بسته کړه لاس مه کاږه له دې خريده
که يار غواړې همره ژاړه څو درځي عبدالحميده
داپه دا چي دُر مونده شي په درياب نه په وياله کي

****
***
*

[۲] استعانه: په لغت کي پور اخيستو ته ويل کېږي. په ادبي اصطلاح بيا و هغه صنعت ته ويل کېږي چي شاعر پخپل کلام کي د بل شاعر څو بيته د تضمين په توګه راوړي. و دغه شعر ته استعانه ويل کېږي.



ليکوال: استاد عبدالرحيم هاتف

# د بابا اخلاق



په دا نزدې ورځو کې ښاغلي مطيع الله روهيال دوه ځله په تليفون کې د مرحوم رحمت الله بابا په اړه څه پوښتني راسره طرحه کړې او زه ئې خبر کړم چې د بابا نشر سوي اشعار ئې سره راغونډ کړي او په مردفه توګه ئې اوډلي دي او د بابا د اشعارو په اړه په يوه غونډه کې چې د مرغومي پر ۱۴مه په نظر کې ده ښايي توضيحي خبري وکړي. خداي دي د ده ژبه د دغه بيان له پاره له عقدو پاکه لري او خداى دي ئې ډېري برياوي په برخه کړي.

خو هر وار د ښاغلي د پوښتنو سره زړه ته دا راګرزېدل چي بابا د شاعر په توګه په کندهار کي ستايل کېدی خو دا برخه د هغه مرحوم د يوې بلي برخي په پرتله ډېره سپکه وه او په هغه مورد کي خبري نه کېږي، يا نه سي کېداى. دا ځکه چي په هغه برخه کي معلومات محدود دي يا خو هغه څوک چي معلومات لري هغه د ګوتو په شمېر دي. زه داسي فکر کوم چي د بابا سره په نزدې حشر سوو خلکو کي به يوازيني ژوندى ساکښ زه پاته يم او که زه دا امانت وړاندي نه کړم زما به غاړې بندي وي او د هغو معلوماتو د وړاندي کولو له پاره تر دغه ښه موقع ما ته هم په ګوتو نه سي راتلاى. خبري به رالنډي کم او رابه سم اصل مطلب ته.

## د مرحوم رحمت الله بابا اخلاق:

په مجمل او مختصر عبارت د بابا

اخلاق قرآني او اسلامي اخلاق وه، داسي چي په هر عمل او عکس العمل کي ئې د قرآن مجيد حکم و ذهن ته حاضر وو. بابا هيڅکله قهر او غضب نه درلود يا ئې نه ښکاره کاوه. "والکاضمين الغيظ و العافين عن الناس" ئې د عمل لارښود وو.

بابا هيڅکله غيبت نه کاوه او د قرآن دغه حکم چي د ورور د غوښو خوړلو سره ئې غيبت تشبيه کړی دئ تل و سترګو ته ولاړ وو.

بابا د "فاما اليتيم فلاتقهر" داسي مراعات کاوه چي هر کتونکی به ورته حيران وو. همدا راز ئې "و اما السائل فلا تنهر" داسي رعايت کاوه چي منل به ئې مستمع ته ستونزمن وي خو ليدونکی به ئې هېرولای نه سي. د مثال په توګه:

بابا ډېر مسکين سړی وو. هره ورځ ئې ښوروا نه سوه برابرولای، که چيري به ئې په هفته کي يوه شپه کټو باندي کړې وه، نوري شپې ئې د شلومبو په ناتار تېرولې يا به هم کله کله د شلومبو پر ځای مستو د ناتار و کاسې ته ځان رساوه.

زما په زړه دي چي د ښوروا په شپه به هم کله چي فقير په دروازه کي ږغ کړه چي: "فقر راوړئ خير يوسئ" بابا به خپله وروستۍ ګوله هم په کاسه کي پرېښوده او کاسه به ئې فقير ته وروړل. دا عمل ما په خپلو ګنهکارو سترګو مکرراً ليدلی دئ.

د سورة حشر د نهم آيت د مفهوم سره سم زما د بابا د ژوندانه يو سرګذشت داسي را په زړه کېږي:

د کندهار ژمی وو، چي هغه هم کله کله بغاوت کوی، بابا ته ئې زوی يو ښه غزنيچی پوستين راوړی وو. ښه وو بابا به په تود وو، خصوصاً چي بابا هر لمونځ په جماعت کاوه او تکبير تحريمه ئې هم کله نه وو خطا کړی. تر هغه پوستين لاندي ئې مسجد ته هوسا تګ راتګ کاوه، کورنۍ ئې هم په خوشاله وه، چي ګوري يوه ورځ بابا لڅي او ړې کور ته په رېږدېدو راغی.

– پوستين دي څه سو؟ پوستين دي څه سو؟

بابا په جواب کي ورته وويل: کله چي له مسجده څخه د کور پر خوا را روان وم يو بل تر ځان مستحق انسان مي وليدی چي له يخنۍ څخه رېږدېدی، پوستين مي هغه ته ور پر اوږو کړ.

بابا سپکي سپوري نه ويلې. حتی هر چا ته ئې په لوړ آواز ږغ هم نه کاوه. په عين مسکنت کي ئې د نظافت جدي مراعات کاوه.

د مرحم شرف الدين اخندزاده د جمعې د ورځي او د روژې د مياشتي د دور استماع ئې نه ناغه کول.

د ټولو دغو صفتونو سره چي درلودل ئې بابا هيڅکله و چا ته نصيحت نه کاوه او تل ئې دا حکم و سترګو ته جګ ولاړ وو چي قرآن وايي آيا تاسي نورو ته نصيحت کوی او ځانونه مو هېر کړي دي؟

بابا په ژوند کي د ښو شنو چايو عملي وو او د تنبکو چلم ئې څکاوه چي د هغه په پايله کي ئې د Copd ناروغي او

شدید ټوخي ورولوېدی، که څه هم د عمر په آخر کي ئې چلم پرېښود خو ټوخی ورسره ملګری پاته سو.

بابا به د کور په مځکه کي پټوني کرل او په خپله به ئې اوبول.

بابا د خپل کور بام پخپله ګلاوه، داسي چي د دوبي په هره ورځ کي به ئې یو دوې کاسې اخېړ (کاه ګل) جوړ کړ هغه به ئې بام ته وخېژاوه هورې به ئې هوار کړ، د دوبي آخر ته به ټول بام په دې توګه کاه ګل سوی وو.

د پسرلي په موسم کي به بابا د باران اوبه نیولې، هم به ئې چای په هغو اوبو کي پخولې هم ئې مخامخ هغه اوبه چښلې او د بابا مېرمني هر کال سمنو ایښودی، چي بابا ئې ممانعت نه کاوه او هغه به هم د باران په اوبو اوبول کېدی.

لیري له اوسه کندهار ته به کله کله وبائي ناروغۍ راتلې چي و ډېرو خلکو ته به هغه د تاریخ مبداء وه. لکه د تبي کال، د وبا کال، د وسي کال، د کاختۍ کال (مقصد د قحطۍ کال وو).

د محرقې په یوه کال کي چي غالباً به ۱۳۱۹ یا ۱۳۲۰هـ ش کال وو دغي ناروغۍ ډېر تلفات واړول، خو د بابا مېنه ئې یو مخ ورسپېره کړه. درې ځوانانې ودکړې لوڼې، یوه مېرمن او یوه لمسۍ ئې مړې سوې او مرحوم بابا په کورنۍ کي د یوې صغیري یتیمي لمسۍ سره داسي یوازي پاته سو چي د چښلو د اوبو مرستندوی ئې هم نه درلود. د یوه لیري خوریي مېرمن به ئې په هفته کي دوه واره راتله او ډوډۍ به ئې وریخول. زما مور هم په ناروغي مصابه وه، مرسته ئې نه سوه ورسره کولای. په دغه مشکل حال کي هم چا له بابا څخه غیر له رضا په قضا نور څه نه سوه لیدلای.

دا یوه خاطره او یوه شرعي مسئله به لا هم درته ولیکم:

بابا په بلدي کي زېږېدلی او لوی سوی وو. په ځواني کي ښار ته راکډه سو او د نورزو په کوڅه کي ئې یو وړوکی کورګی د سید نورعلي اغا څخه په ګروي – بیع وفا – واخیست. هغه د اومو خښتو کور یوه خونه او یوه زېرزمیني درلودل. د میرهزار و جامع ته څرمه د یوه واړه مسجد په اړخ کي ډېر کلونه په دغه کور کي واوسېدی. غالباً ۲۵ – ۳۰ کاله، خو یو وخت سیدنورعلي اغا د خپل کور د تخلیې غوښتنه وکړه. بابا ومنل او مختصر مهلت ئې ځني وغوښت. دا وخت بابا فقط یو څه د دغه مشکل د هواري له پاره درلودل او هغه دا ول چي یو وخت مرحوم وزیر محمدګل خان مومند بابا ته د یوه شعر په صله کي د ارغنداو ولسوالۍ د مناره په کلي کي یو وړوکی سرکاري انګوري باغ وربخښلی وو. دا باغ ما لیدلی وو. د تورو انګورو باغ وو. لکه زما له پاره چي لیري وو د بابا له پاره هم لیري وو. زما هیڅ په زړه نه دي چي کله له هغه باغه څخه بابا ته انګور راغلي وي او یا دي بابا د هغه حاصل اخیستی وي. خو دغه وخت ئې د بابا ډېر لوی مشکل حل کړ. هغه باغ ئې خرڅ کړ، غالباً د هغه باغ پر باغوان او په هغو کمو پیسو ئې بیا هم د نورزو په کوڅه

کي يو بل کوچنی کور د ملا شېرعلي اخند د مسجد سره نژدې رانيوی او د سيدنور علي اغا کور ئې پرته له دې چې د هغه شکايت پورته سي ورخوشي کړ. بابا د کور د خوشي کولو پر مهال خپل د ګروي د پيسو غوښتنه و نه کړه، ما هغه وخت بابا ته ور په زړه کړه چې ولي خپل حق نه ځني غواړې؟ بابا داسي جواب راکړ:

"بيع وفا په اصل کي د امانت حکم لري، چې بايد هغه څه چې په ګروي اخيستلَ سوي وي له هغه څخه څوک ګټه نه واخلي، لکه څنګه چې ورسپارل سوی دئ هغه ډول ئې وساتي. نو زه خو په دغه کور کي ډېر کلونه اوسېدلی يم، يعني ګټه مي تر اخيستې ده، ممکن دا کور هم استهلاک سوی وي له يوې خوا د کور استهلاک، له بلې خوا زما استفاده، دواړه د امانت سره په ټکر کي راځي. ځکه نو زه د ګروی د پيسو غوښتنه نه کوم".

رشتيا خبره دا ده چې د بابا مثال نه پيدا کېږي او که وي مشکل او نادر به وي.

د عمر په آخر کي بابا په داسي حال کي حج ته ولاړ، چې اول ئې خپل کور پر چرګه بار کړ، په کور کي چې ئې هر څه د خرڅولو وه هغه ئې خرڅ کړه او په هر شي چې پيسې جوړېدې هغه ئې په کور کي نه پرېښووده. ته وا په دې پوهېدی چې بېرته نه راځي. حج ئې وکړ، د حضرت رسول الله ﷺ زيارت ته چې د ده د عمرونو ارمان وو ورغی، د بېرته راتلو پر مهال د کوويټ په رېګستانو کي ناروغ سو، هورې مړ سو، او د سفر ملګرو کندهاريانو ښخ کړ او جريان ئې تر موږ پوري راورساوه. خدای تعالی دي ټولو ته جنتونه ورکړي.

***

استاد احمد صميم

## شعر

د اور ژبــــــــه ورسره ده
پــه ورېــښمو کــي ئــې ژونــد دئ
د يــو پــټ رمــوز اظهــار دئ
ظرافــت ئــې لکــه قنــد دئ

يــا د زړه د وينــو رنــګ دئ
يــا د زړه پــټ کيفيــت دئ
يــا تــصوير او انعکــاس دئ
نــازکي ده - لطافــت دئ

يــا مــوزون بليــغ کــلام دئ
يــا د ســوي زړه ژړا ده
يــا آلــه د پــارولو
د حــالاتو تماشــا ده

يــا يــو دوک دئ د دردونــو
يــا مرغــه دئ سرګردانــه
يــو حساس مفهوم د عشق دئ
يــو پيغــام دئ جاويدانــه

۱۳۹۱ جدي - کندهار

# زوړ ادب

چلوونکی:
خلیل سروري

خوشال خان خټک

**سترګي**

و دي نه وینم زه ستا وصال په سترګو
که بې تا را درومي بل جمال په سترګو
مېلمستيا مي د زړه ویني ورته کښېښوې
چي مېلمه مي شو د یار خیال په سترګو
هغه دم مي د زړه داغ له دِله دور شو
خو چي راغئ ستا د وروځیو خال په سترګو
چي ډېر خلق سره ناست وي، عجب ښه شي
د مینو سره قیل و قال په سترګو
په غمزو، په کرشمو، په مکېږونو
نن دي نه وینم په ملک کښي سیال په سترګو
عارفان د قناعت په ګنج توانګر دي
چي ئې نه راځي د خلقو مال په سترګو
د مکې دېوال به نور په خوله یاد نه کړم
ما چي ولیده دا ستا دېوال په سترګو
ستا په ګوتو کښېده رومال چي راغئ
زه له میني مړم ستا رومال په سترګو
هغه مخ چي مي به تل لیده اوس ګوره
چي ئې نه وینمه ماه و سال په سترګو
چي به ستا له زېبا مخه بل مخ ګورم
زه به چیري کښېږدم دا وبال په سترګو
و ښه مخ وته له ورایه ځلبلاند شم
لکه وینې لوغسی تال په سترګو
نور عالم خو د یارانو تاز په سروړي
تل نازونه وړي د یار خوشال په سترګو

(مرغلري، ۲۹۱مخ- ارمغان خوشال، ۴۸۸ مخ،
د خوشال خان خټک کلیات، ۱۱۱مخ)

رحمان بابا

***

او ښکي نه لري حساب زما د سترګو
بې حسابه شو، سېلاب زما د سترګو
سیاهي مي همه واړه سفېدي شوه
هسي پرېولی شو، کتاب زما د سترګو
که مي سره دي، که مي سپین دي، که مي تور دي
او ښکو یووړ، هر اسباب زما د سترګو
چي رخسار د هغه یار را ځخه پټ شو
حبطه شو آب و تاب زما د سترګو
چي ګوزار مي په دا ګرمو او ښکو نه شو
مګر کاني دي، جباب زما د سترګو
که نور خلق د آفتاب په رُڼا زیست کا
مخ د ترکو دی، له افتاب زما د سترګو
ما یې خیال له ابلق د سترګو زین کړ
قدم نه ږدي په رکاب زما د سترګو
چي مي نقش په زړه سرې شونډې د یار شوې
کان د لعلو شو ګرداب زما د سترګو
لکه تښتي وحشیان له مردمانو
هسي وتښتېده خواب زما د سترګو
ما رحمان چي سترګي روښي په خپل یار کړې
اوس محال شو، اجتناب زما د سترګو

(۱۳۵۶ل. - چاپ دېوان، ۱۲۳-۱۲۲مخونه)

پیرمحمد کاکړ

***

ایستاد نه لري باران، زما د سترګو
سیل د اوښو وري مژګان، زما د سترګو

ما وې سترګي به رسوا په ژړا نه کړم
فراق ځیري کړ ګرېوان، زما د سترګو

دغم اوښو مي سیاهي د سترګو پرېوله
دما دنقش شو ویران، زما د سترګو

هم په دا چي دي څهره د اور لمبه شوه
باندي کسي دي بریان، زما د سترګو

پر بارخو چي مي بهیږي لاري لاري
دا لښتي دي ګل روان، زما د سترګو

ستا د غاښو، د سرو شونډو له تاثیره
مدام ووري دُر مرجان، زما د سترګو

په هر څاڅکي کښي مي نور له سترګو لوېږي
تور اوره چي شي ګریان، زما د سترګو

توپاني به د حسرت په دریاب نه وم
که دا موج وای په فرمان، زما د سترګو

دېر مشتاق دي د دیدن زه پیر محمد یم
بې تا نشته بل درمان، زما د سترګو

(صحاف چاپ، ۹۹ مخ، کابل چاپ، ۶۹مخ)

شمس الدین کاکړ

***

یار وې لري شه له ما، ما وې پر سترګو
مه راځه زما پر خوا، ما وې پر سترګو
ما وې تاته به رقیب په کوم سبب شم
ده وې ترک کړه ماسیوا، ما وې پر سترګو
ما وې ستا وصل په څه میسر کېږي
ده وې وښنده د نیا، ما وې پر سترګو
ما وې نه لرم دنیا فقیر مفلس یم
ده وې سر په عوض را، ما وې پر سترګو
ما وې سر به زه زر ځله تر تا جار کړم
ده وې خوښ په دا سودا، ما وې پر سترګو
ما وې اوښکي مي په سترګو کښي نور نشته
ده وې ویني کړه رها، ما وې پر سترګو
ما وې ستا له رقیبانو ډېر وېرېږم
ده وې مه شه وار خطا، ما وې پر سترګو
ما وې ستا د مخ وګل ته مي لار نشته
ده وې کړه په شپه ژړا، ما وې پر سترګو
اوس له یاره صلح زه شمس الدین دا کړم
ده وې وړې به مي جفا، ما وې پر سترګو

(صحاف چاپ، ۱۰۰مخ)

میرزا حنان بارکزی

***

خلاصیت نه مومم له لاسه زه، د سترګو
په بلا که زړه اخته، کاته، د سترګو
په ګلشن کي یې فارغ کړم له نرګسه
راته جوړه سوه عجب کړوه، د سترګو
په قیامت بې شهید ګونګ وي نه پوهېږم
ورکړه چا دا هسي شان رانجه، د سترګو
کې هر څو ځني ساتم، نه ساته کېږي
دلبران مدام وري زړه، تر وره، د سترګو
په بانو بې یښي مجروحي سي بېرېږم
پر قدم به مي وي ایښې خوله، د سترګو
د ښه یار وداع ده ګرانه معلومېږي
راته ګران نه دي هر ګز خاته، د سترګو
که د زړه سلامتي غواړې حنانه
پر ځان ونیسه واجب ساته، د سترګو

(صحاف چاپ، ۱۰۵ مخ)

# هنر او ادب

چلوونکی:
وحید سباوون

د استاد احمد صمیم دوه شعرونه:

## دا څه شي دئ؟

د یو زړه څخه راوزي — او بل زړه ته لاره مومي
نابلده ابتکار دئ — یو فریاد د زړه له کومي

عاطفه او تخیل دئ — د ښکلا یو تصور دئ
یو جذبه او جم و جوش دئ — یو تعبیر او تفکر دئ

یو لطیف ږغ دئ د مینې — یا د زړه او روح آواز دئ
هم له قومه څه راوزي — بیرته قوم ته نوی ساز دئ

د الفاظو یو نبوغ دئ — یو ترکیب د سلاست دئ
د روښا زړی تورتم ته — یو هنر دئ او صنعت دئ

د ضمیر ږغ او الهام دئ — نالیدونکی مقناطیس دئ
یا د قوم د اقبال ستوری — چوکیدار دئ او پولیس دئ

انبساط او انقباض دئ — د حالاتو نندارتون دئ
د نازکو نکتو پاڼه — د احساس یو پوهنتون دئ

یا هینداره د ملت ده — یا زېور دئ ښکلی ښکلی
یا یو شرنګ دئ او آهنګ دئ — تعجب دئ غلی غلی

## شاعر

زه ماهر د خوږې ژبې
په ظاهره که څه تریخ یم
زه دلسوزه نغمه وایم
زه د قوم د بخت مریخ یم

د زرګر د حساب تله
زه جذباتو ته یو ژوند یم
زه د رزم حماسه یم
زه هر بزم ته پیوند یم

زه د تیتو رواج نه یم
د قلم علمبردار یم
زه پالونکی یم د فکر
د معنا د مرغې ښکاری یم

کوم تعریف به تاسي راکئ
دا زه څوک یمه عالمه
د زمان سره جوړ نه یم
خو تشخیص ورته لرمه

طالب رحیمي

## د انارګل په ویاړ

څه بدمسته پسرلی دئ
سره جامونه ښکاري د ښت
بتخانه او میخانه سول کور او کلی
کم ساقي دئ باغوان سوی د دې کښت

د صبا مسیح ښندلې ده هر لورته
د ښکلا او د زرغا نطفه بېدیا کې
لت و کوب ئې شنې مرغې کړې
نازنینو له هوس څخه په لغښت

د آذر د لور پوړنی
دئ غاټولو پر سر کړی
هر رېدی د مُغ بچی دئ
آتش خوی په پښت پر پښت

د نرګس په خوله کې تی دئ
د نیسان د بامي ناوي
د شید و پر ځای شراب څکي
لور کاته نه کړي بدمست

پراویج د هند و کش دي
د سوما شراب پاشلي
چي هر ګل ئې چپه ګوري
هر ګلبوټی مست الست

د ارغند زړه هم انګار سو
سراسر ګل د انار سو
د قدرت یو تنداره ده
چي هیڅ نه لري کمښت

د شهید د وینو رنګ دئ
د انارو شکوفه کې
بلبلان حماسې وایي
د هیواد د اتلانو په درنښت

۱۳۸۵-ثور، کندهار

ط. شپول

## د ښکلو شپول

زما سروکار سو د نازک بدن بتانو سره
بس نور مي ژوند سو بتخانه کي د رندانو سره

که مي د ښکلو حُب په زړه کي وو پرسد به نه سم
نور مي خلوت کي لتهوئ د بدمستانو سره

ولي شهلا سترګو به زما زړه خال ویشتلی نه وي
چي کشوي دا لېندۍ ورځي برچیکو بانوګانو سره

چي صبحدم ئې له ګرېوان څخه له ورا ښکاره سو
د سهار لمونځ له مونږ کذا سو د یارانو سره

نور مي یا مست یا خمار ګورئ په څېرو ګرالبو
یم به روان پر بېټ بیابان د لېونیانو سره

کشکي ما هم یو ښه زړه سواندی نازنین لرلای
چي لکه شم زړه ئې سوځلای د مینو بوراګانو سره

زه لکه سپریم هسي "شپول" د هر زیبا ګلبشر
د خط سبزه غوندي چي مل وي پر رخسار د ګلرخانو سره

چي د ریا تسپې مي لاس کي د زاهد ولیدې
ځکه مي تار وسکولاوه د دغو ټګو زاهدانو سره

۱۳۹۲، د ثور لسمه-کندهار

## پښتو لنډۍ

پاس پر کمر ولاړه ګله
نصیب د چا یې او به زه درخېژومه

ته د اختر په سهار راسه
زه به در ووزم توري سترګي سره لاسونه

دوا خان مینه پال

## غزل

کله چې سپرلیه ستا شپې راپورته سي
سمدم له غوټیو نه وږمې راپورته سي

ستا چې د راتلو خبر تر ما پوري راورسي
اورسي له وجوده مې لمبې راپورته سي

زور د اور ورینو شونډو ما ته معلوم سوی دئ
دا نشه به چیري له پیالې راپورته سي

راسئ د دامان هوسیو بیا دلته اتڼ وکړئ
زموږ له ربابونو به نغمې راپورته سي

ستا د تغزل بزم که خپور سي **مینه پال** آشنا
مړي به مو ټول له هدیرې راپورته سي

فضل الرحمن علیزی

## غزل

هر بیګاه وي تر سهاره پوه روښانه
وي له غمه د دې ښاره پوه روښانه
هره ورځ زموږ له کلي شهید وزي
هره شپه وي پر مزاره پوه روښانه
پاکي وینې د افغان پکښې بلېږي
دا چې نن ده د اغیاره پوه روښانه
دا وګړي چې وردرومې تروږمې ته
بس او س دوی ته ده په کاره پوه روښانه
زه چې ګورم د ادب په فلسفو کې
بله کړې وي کندهاره پوه روښانه
دا دوعا د ګرانې مورده **علیزیه**
چې وي تا ته پر هر لاره پوه روښانه

سعید لودین/ کاناډا

## کندهاره

له نامه سره دې ژاړم بې اختیاره
کندهاره کندهاره کندهاره
لا دې وینې له زړګي څخه بهېږي
لا بشر دې په اورونو کې سوځېږي
لا دې ستر ګو څخه اوښکې راتوېږي
زما د ژوند او د یادو ښکلي بهاره
کندهاره کندهاره کندهاره
ستا چې هلته د دښمن واري پر تن سي
چې په وینو د مظلومو سور کفن سي
زما دلته په دردونو ټول بدن سي
زما د خوارو پښتنو ښکلي دیاره
کندهاره کندهاره کندهاره
زما له عمره سره تا کې جنازې دي
د کونډیانو د فریاد سوي نارې دي
لا له ځوانو وینو ډکي دې ویالې دي
د هر لوی آفت زغمونکې طاقتداره
کندهاره کندهاره کندهاره
دا چې نن بیا د غلیم پر تا ګوزار دئ
او پر ښکلي تن دې بیا ناسور پرهار دئ
د تا اهلو اولادونو دې دا کار دئ
دا قسمت دئ چې موږ یو نن بې سالاره
کندهاره کندهاره کندهاره
خو قسمت به نور په خوښه زموږ بدلېږي
په هوښیارو ځوانو ګوتو به کښل کېږي
د بابا روح به لحد کې خوشحالېږي
زما د ګران وطن با عزمه باتور پلاره
کندهاره کندهاره کندهاره
تر بمبار او تر اورونو راوتلی
د انار ګل دئ نن بیا موږ ته راغلی
او د ژوند راز ئې دئ داسې راښودلی
په خندا مو د ژړا هستي کړئ خواره
کندهاره کندهاره کندهاره

نثاراحمد صالح

## غزل

د طبیعت په تخیل کې مې ځان خوار ولیدی
د مینې ښار کې مې مین سړی بې یار ولیدی

ستا د راتلو امید راوچې کړې د سترګو اوښکې
چې ته راغلې لېمو بیا زوړ انتظار ولیدی

ستا د رخسار او تورو زلفو د لیدو اثر وو
چې به مې خوب کې پر ګلاب باندې ښامار ولیدی

له غمو پس مې په نصیب سوه خوشحالي د جانان
د شپې نه وروسته ما په سترګو روڼ سهار ولیدی

تا چې د غم ژوندون کې تېغ د جفا راکړ پر زړه
ما پر زخمي وجود سربېره بل پرهار ولیدی

د بل په دود به سوم خپه چې مو سوې دواړې خطا
بیا به خوشال سوم چې پر سر به مې دستار ولیدی

د ژوند سېلۍ د ژوند له کلي څخه هله تېر کړم
چې مې هینداره کې د ږیرې سپینکی تار ولیدی

دېرئې حیران کړمه د دې مالت ناشکره خلکو
ښه ئې ایله کړل خو پر بدو مې تلوار ولیدی

نوی انځور به راته راغلی چې جانان به خندل
ځانګه پرپرده چې پر ګل پاڼه به مې خار ولیدی

ما خو د شعر د اسمان ستوري لیدلي همېش
پر دا آسمان مې یو ښایسته ستوری "**نثار**" ولیدی

حاجي غلام نبي سعید

## غزل

تنها ومه راغلی او تنها واوسېدم
په ګډو عالمونو کې جلا واوسېدم

لمر نه وم چې قبول سم د حالاتو پر تندي
سایه غوندې دا زه د وخت تر شا واوسېدم

د ستورو تر مداره که د تلو نه وو فرصت
د څو شپېو پر سر لکه برېښنا واوسېدم

که شپو شپو بیدولم د غفلت په درانه خوب
په ورځو کې هم هسې بې پروا واوسېدم

د نن پر ناکامي نه وو سهار د اعتبار
حساب کې به په هیله د سبا واوسېدم

حاجي عبدالستار حیراني

## ارمان سوځي

څو تر څو به د لیلا بازوګان سوځي
توري سترګي اننګي زنخدان سوځي
توري زلفي دي سپېرې په سپېرو دوړو
هم دي خال هم دي ابرو او مژګان سوځي
په سرو وینو ګلابي لمن دي جار سم
ولي ستا د سر تو کړی په هر آن سوځي
نه پوهېږم عاشقان دي مطلبیان
که غښتلي رقیبان ستا ارمان سوځي
ستا د آه او اوه په اور دي وسوځېږي
هغه څوک چې ستا د غاړې ګلان سوځي
رب دي وکه ښایسته خوله د خندا کړه
"**حیراني**" ستا په ژړا او خپګان سوځي



ډاکټر عبدالرازق پالوال

# د پښتنو د نامه اصل ؤ منشا





د ۱۳۸۶هـ ش کال د وري د میاشتي پر شپږمه باندي د شاه حسین هوتک افغان ترک لیسې له خوا څخه پر پښتو ادبیاتو باندي و یوې غونډې ته وروبلل سوم. په دغې په زړه پوري غونډې کښي د لیسې د پښتو ادبیاتو د استاد له خوا څخه د زدکړې خورا ارزښتناک نندارتون جوړ سوئ ؤ. دی په پخپله وینا کښي د ښادروان علامه عبدالحي حبیبي په استناد د پښتنو د نامه پر اصل و منشا باندي وړغېدئ. د ده وینا زه و دې پسې لیکني ته وهڅولم، څو د خپل نظر دفاع مي کړې وي، چي ګوندي د لوستونکو له پاره به هم ګټوره ثابته سوې وي.

**پکتیانا:**

د پښتو ژبې، ادبیاتو، او د پښتنو د تاریخ راڅوندي کولو Renaissance مخکښ ګروېږونکي، څېړونکي او عالم پوهاند عبدالحي حبیبي د یوناني تاریخ کښونکي هیرودوت په کتاب کښي د پکتیس او پکتویس نومونه، چي په ځینو پخوانیو هندي آثارو کښي هم یاد سوي دي د خپلي مطالعې د کتابونو په پاڼو کښي وموندل. هغه سیمه چي د پکتیس Paktis په نامه سره نومېدله دغه اوسنی ننګرهار ؤ. له پکتیس Paktis او پکتویس Paktues له نومونو او له دغي ځایي اړوندتیا څخه ئې دی داسي وپوهېدئ چي دوی بخدي، بخدوي، بخدیان او پختانه دي. دا ځکه چي د آریائي ژبو /خ/ په هندي ژبو کښي په /ک/ سره اوړي. دغه اوسني نورستانیان او پشه یان (شاړي) لا اوس هم په خپلو ژبو کښي /خ/ په /ک/ سره وایي. له ده سره نورو هم سر وښوراوه، او آن

چي وړاندنیو مستشرقینو لا هم داسي نتیجه اخیستې ده. دوی دغه پختانه د هندوکش په شمال کښي د بخدي اوسېدونکي بخدیان بللي دي چي تر هندوکش را اوښتي ول. دغسي به نو د بخدیانو ژبه هم بخدوي، (بخدو) بللې سوې وه او پوهان صاحب لا خو دا حدس هم وهلئ ؤ چي دغه ژبه په وروستو کښي نو (پختو) نومېدله او ویونکي به ئې نو خود (بخدیان) او په وروستو کښي (پختانه) ول. نو د دغه ژبني اتفاق سر و پای سم دم سره ویل، او اوس ئې هم ډېر منونکي او پالونکي سته.

د لوی استاد پوهاند حبیبي نظر او دلایل سمدلاسه داسي په هوس سره ومنل سول چي له پکتیس (ننګرهار) څخه لیري ئې یو ولایت د پکتیا په نامه سره ونوماوه سو او اوس ئې له څنګه سره لا بل ولایت هم پکتیکا نومول سوئ دئ. ګورو به چي لا کله به خوست په پکتیانا سره نومول کیږي. کارو د پکتیکا په اړوند داسي کښلي دي:

"دا چي کسپه توروس مو پښاور وټاکه او پکتویکه مو د پېښور شاوخوا سیمه وټاکله، نو آیا موږ ئې باید داسي وګڼو چي د پکتویکه او پکتویس مشابهت له اوسني پختون سره پاک صاف تصادف دئ؟ ګریرسن دغه پېژندنه ومنله، خو اوسنیو خورا پیاوړو ختیځ پوهانو تندی پر ګورملئ دئ. د دوی سرغنه پوهان د کېمبریج پروفیسور بیلي Bailey او د اوسلو پوهنتون پروفیسور مارګن ستېرنه دي. په سري سره وروستني د ختیځ افغانستان په سیمه کښي عملي (علمي تحقیقاتي) تجربه لري او د دې و نتایجو ته باید په خورا ډېر درنښت سره قایل اوسو. راسئ دا وازمویو چي په کومه زمینه کښي له دغو مطالعاتو سره ملګرتیا کېدلای سي.

د پروفیسر بیلي مقاله چي (کوسانیکه) نومیږي، په ۱۹۵۲ کښي په Journal of The British School of Oriental and African Stuties کښي چاپ سوې ده، دی وایي چي د فیلولوجۍ پر اساس باندي پکتویس له پښتون Pashtun سره اړوندېدلای نه سي. دی وایي چس سخت [زیږ] تلفظه پختون Pakhtun په مقایسوي توګه سره نوئ او لهجوي [نوم] دئ. دی وروسته دا مني چي یونانیانو کت Kt د ایراني خت Kht پر ځای باندي کاراوه (د څرګندوني په توګه باکتره Baktra ئې د فارسي باختریس Bakhtris پر ځای باندي کیښې) ځکه نو د دې استدلال یوازي په ټینګار سره د پختون د تلفظ پر رد باندي ولاړ دئ" (کارو ۱۹۵۸: ۳۵).

**پرسوانه:**

د پروفیسور مارګن ستیرنه نظر په یوه اوسنۍ مقاله کښي چي د اسلامي دایرة المعارف Encyclopedia of Islam کښي د افغان تر نامه لاندي چاپ سوې ده، بیان سوئ دئ. دی هم د پښتون کلاسیک شکل د شمال ختیځ ږغېدني له پختون سره تړاو موندلای نه سي. دی هم د ببلي په شان (خت Kht) یو وروستنی لهجوي شکل بولي او (شت Sht د یوناني په کت kt) سره کښل کېدلای نه سوای. ځکه نو دی هم د دوی معادله ور ردوي. دی د پشتون او د پتولمې (بطلیموس) {Ptolemaius} پارسیتای Parseyetae چي د پاروپامیزاسوس اوسېدونکي ول تر منځ اړوندتیا ښووي. د دغي پېژندني په اړوند زما عکس العمل دا دئ چي "پرسیتای" او دا چي وایي پخوانی شکل ئې (پرسوانه Parswana) ؤ، د پارس یا فارس و خلګو ته چي پارسیوان یا فارسیوان ئې هم بولي

ورنژدې کېږي، چې پټهان ئې اوس هم داسي بولي" (اولاف کارو ۱۹۵۸: ۳۶).

د پروفیسور مارګن ستېرنه په (پرسیه تای Parseyetae) کښي – تای tae – د یوناني ژبي جمع نخښنه ده. (پرسیه) په خپله جمع شکل دئ چي اصلي څېر ئې (پرڅه Parca) ؤ. د کارو (پرسوانه Parθuwana) په اصلي شکل سره (پرڅووانه Parcuwana) د (پرثووا Parθuva) و اوسېدونکو ته ویل کېدل.

**پختانه**:

کارو د پروفیسور بېیلي او پرفیسور مارګن ستېرنه د نظریاتو تر ښوولو وروسته داسي کښلي دي:

"دغه دواړه لیکوالان د تکره ژبپوهانو غوندي پر دې ټینګار کوي چي د /ش Sh/ [ښ] اوو ښتون په /خ Kh/ سره اوسني لهجوي توکېدنه ده [...]. زه په ډېر احترام سره مخالفت ورسره کوم" (۱۹۵۸: ۳۶).

دی دغه د کابل راډیو پروپاګنډه (تبلیغات) بولي چي وایي و لطیفي لهجې ته پر سخیفي (زیږې لهجې) باندي ترجیح ورکوي. اوس پېښه برعکس ده. خو د کابل راډیو تبلیغات د ناروې تر پروفیسور مارګن ستېرنه پوري او د انګلستان تر پروفسور بېیلي پوري د ۱۹۵۰ع په شاوخوا کي څنګه ورسېدل؟ موږ خودښکه کابل راډیو په کندهار کښي لا سمه اورېدلای سوای. آیا هغېو کابل راډیو اورېدله؟

که دغه د پکتیس او پکتویس نومونه رشتیا هم له بخدي او بخدوي څخه د هندي ژبي تر اصولو لاندي اړول سوي هم ول، و موږ ته دا رامعلومه نه ده چي بخدیان ولي له بخدي (بلخ) څخه و اوسني ننګرهار ته لېږدېدلي ول.

دغه به په هیڅ توګه سره د سمي کار نه ؤ. دوی به یا بل غښتلي قوم له بخدي څخه په زور سره ایستلي او له وطنه څخه ایسته شړلي ول یا به د بخدیانو یوه بادشاه دوی د یوه لښکر په توګه سره په اوسني ننګرهار کښي د دې له پاره ځایان کړي ول څو د خیبر دره او کوتل ئې ساتلي وي او و کابل او شمال ته ئې د هندیانو یرغلګرو مخه نیولې وي. دمخه تر دې چي انګلیسان هند ونیسي کابل د هندي شاهانو او افغاني شاهانو له پاره دوبنی شاهي ښار ؤ. دوی په دغه لښکر سره د خیبر دره او کوتل بندولای سوای.

په را وروستیو کښي (د پښتنو نوی پخوانی تاریخ) دوهم ټوک تر چاپ وروسته په ځینو لیکنو او بیانونو کښي د پوهاند حبیبي په استناد سره پر دې باندي ټینګار سوئ دئ چي د پښتانه نوم له بخدي، بخدان، پختان، پاکتین او بخدین څخه اخسته سوئ دئ. زه به د څرګندوني په توګه سره له پوهاند صاحب رشاد سره د ښاغلي صدیق الله بدر اړونده مرکه ټکي په ټکي څني درته راواخلم. البته لاس وهلي (اړول سوي) توري به ئې په پتریانو کښي وراصلاح کوم:

"استاده! تاسي په خپلو خبرو کي د بخدي د کلمې یادونه وکړه. که معلومات راکړئ چي دغه د بخد کلمه د پښت [پخت] او پکت له کلمو سره څه تړاو لري او که نه؟

ځواب: د بخدي له کلمې څخه داسي معلومېږي چي بخدون کلمه له دغه سره ارتباط لري او بخدو یا پښتو چي اوس ئې موږ تلفظوو دا هم له دې کلمې څخه لري [الیري] نه ده.

یونانیانو چي هغه وخت د دې ځای په باره کي معلومات خپرول، چي په خپل تلفظ کي ئې د "ش [ښ]" آواز نه درلود نو د "ش

[ښ]" آواز ئې همېشه په "ک" باندي [سره] افاده کړئ دئ، مثلاً د پښت کلمه په یوناني آثارو کي پکت لیکله شوې [سوې] ده. د پکت ذکر غالباً په زړو هندي متونو کي هم شوی [سوئ] دئ او ځیني ختیځ پوهان یا پښتو پوهان داسي فکر لري چي دا هغه د "شه [ښه]" آواز ؤ، خو اوس په هندي ژبو کي د "شه [ښه]" آواز نشته [نسته]، مثلاً [د] دکن کلمه اوس په هندي کي د جنوب معنی لري، چي پخوانی تلفظ ئې دکشن [دکښن] ؤ. دا چي اوس د "شه [ښه]" آواز ئې په تلفظ کي نشته [نسته] هغه ئې ځني غورځولی [ایستلئ، اچولئ] دئ او دکن ئې ورنه [ځني] جوړ کړئ دئ. نو ګمان کېږي چي د پکتو، پکتیکا، او پکتیا اصل باید پښتو، پښتیانا، او پښتیا وي خو د دې له پاره یو مفصل بحث په کار دئ چي په راتلونکو مرکو کي به پرې بحث وکړو"، (د سیمو تاریخي جغرافیه، له علامه عبدالشکور رشاد سره د مرکو ټولګه، مرکاوو: صدیق الله بدر، ۱۳۸۴: ۲ – ۳).

علامه صاحب د پښت او پخت او پکت په اړوند نور څه ویل هم لرل چي په بله مرکه کښې ئې د بحث هیله لرله، خو لکه چي په دغه اړوند بله مرکه ورسره سوې نه ده. ښایي وروسته به ئې د بخدي، بخدوي، پکت، پختیا، او پکتیا زمان او مکان هم ښوولي وای.

هوښ مو وي چي پوهاند صاحب په کندهاری لهجې سره ږغېدئ چي د استدلال مانا ئې داسي کېږي: پښتو، پښتیانا او پښتیا په پختو، پختیانا (پختیکا)، او پختیا سره اووښتي دي او دغو وروستینو بیا په پکتو، پکتیکا، او پکتیا سره اووښتون موندلئ دئ. دغه ئې د اووښتون اوسنی سمت دئ، او هغه زمان هم، که پېښه داسي وای بل راز تصور کېدلای نه سي.

د پکتیس او پکتویس نومونه چي هیرودوتس د ۴۸۰ قبل المیلاد په شاوخوا کښې له کوم بل یوناني اثره څخه اخستي دي ښایي هغه به تر دې څه پنځوس – سل (۵۰ – ۱۰۰) کاله ترمخه ثبت کړي ول. و موږ ته د دغه یوناني مؤرخ نوم رامعلوم نه دئ او له بده مرغه چي هیرودوت ئې هم یادونه کړې نه ده.

د مطلب ټکئ دا دئ کله چي لوی سکندر تر میلاد ۳۳۰ کاله دمخه و سیمي ته رسېږي دلې نور د پکتیس او پکتویس نومونه نه ول، نه په دغه هندي شکل سره او نه هم د بخدي، بخدوي، یا پختیا او پکتیا په څېر سره. دغه مهال هغه پخوانی پکتیس د سکندر د منشیانو له خوا څخه نیسایا (نیکایا) ثبت کړه سوئ دئ چي هم دغه ننګرهار دئ. دغه مانا هغه پخوانی بخدوي او پکتویس نومونه ئې نور ورک سوي ول او نور ئې په سیمه کښې سته والئ نه لاره. البته هغه بخدیان یا پکتویس به د ننګرهار له سیمي څخه مخ د ختیځ پر لوري باندي تللي یا شړل سوي ول، که به بیرته خپل وطن، باختریا، ته ګرځېدلي نه ول.

که د وروستني ښایېدني له پاره سند یا لا دلیل نه وموندہ سي، نو ئې دغه پسې ښایېدنه ورښایولای سو.

موږ بیا و بخدوی او پکتویس ته ورته نوم په ننګرهار او پېښور او شاخوا سیمه کښې ئې تر ۱۲۰۰ هجري قمري وروسته مومو. دا ځکه چي د نادرقلي افشار په تاړاک، چور او چپاول کښې له ۱۱۵۰ هجري قمري څخه د کندهار او په سرې سره د ترنک ناوې اوسېدونکي خلجیان، د غزني د شاوخوا، وردګو، او هم د کورمي بېټنیان چي د /هخ/ لهجه (پهختو) ئې ویله په یومخیزه توګه سر

له سمني، و ختيځو پښتنو ته چې د مغولو تر واک لاندې سيمه وه، پناه وروړې وه او د يوه بشري سيل غوندې پر وربهېدلي ول. تر دوی لغمان، ننګرهار، کونړ، پېښور، مردان، کوهاټ، باجوړ، دير، سوات، بونير، مانسېره، ازاره او آن تر سرای او اکوړې پورې لا خپور کښلئ ؤ له پناه غوښتونکو پهختنو سره ختيځو پښتنو د انصارو کړه وړه کړي ول. و دوی ته ئې د خپل کلي او کور په ګاونډ کښې د استوګنې ځايونه ورکړي ول. دا چې دوی مهاجرين پهختانه و انصارو پښتنو ته په هر څه سره اړ ول، په بدل کښې به ئې خود ځايي ستمنو کسانو د ځانو، زامنو، او وروڼو له پاره له مهاجرينو څخه د دوی خوندې او لوڼې واده کړي وې. د دغه ازدواج او امتزاج (اخښون بخښون) په نتيجه کښې يوه درېيمه لهجه راټوکېدلې او وده ئې موندلې ده. دغه درېيمه لهجه نه پښتو ده او نه هم پهختو ده، بل لا اوسنۍ ختيځه لهجه پختو ده. دغه لهجه له هغې پخوانۍ بخدي، بخدوي، پکتيس او پکتويس لهجې سره هيڅ تاريخي او لغوي يا ژبنۍ تړاو نه لري. د دوی تر منځ څه دوه زره کاله زماني پرېکړون رامنځته سوئ دئ. هغه دوه زره کاله ترمخه ورکه سوېده او دغه اوسنۍ پختو لهجه دوه زره کاله وروسته او دوه سوه کاله دمخه د خلجۍ لهجې، پهختو، څخه راپيدا سوې ده.

**پښتانه:**

د دې له پاره څه ثبوت سته چې د کابل په ختيځ کښې په لويه غونډه پښتيانا کښې يوه داسې پښتو ويله کېدله لکه نن چې په کندهار، شال او لوېديځ کښې ويله کېږي؟ دغه لاندنې شواهد دې په غور سره وکتل سي:

۱ – يو ثبوت ئې د بايزيد پير روښان، اخوند درويزه، او خوشحال خټک هغه ليک دودونه دي چې دوی و پښتو کښنګ ته ورجوړ کړي دي. د پېژندنې او د شواهدو له پاره ئې وينئ چې د /ښ/ او /ړ/ شکلونه له څه راز موجود و توررو څخه اخستل سوي دي، او د دوی همږغوالئ يا د ږغ وشم، له څرمه يا وړاندي – وروسته تورو سره په اړوندتيا کښې وګورئ.

الف: بايزيد پير روښان د /ړ/ ږوغ و ذال /ذ/ ته ورته باله. ځکه ئې نو د /ذ/ ټکئ د دء له سره څخه اخستئ او په غبږ کښې ئې ورايښئ دئ چې داسي /د/ ايسېږي. د /ښ/ له پاره ئې د /ش/ درې سره ټکي له سره څخه اخستي او تر لاندې ئې ورته ايښي دي چې داسي /س/ ايسيږي.

ب: اخوند درويزه کښلي دي: /ز/ چې درنه (درنده) سي درې ټکي پر سر باندې ورايښوول کېږي چې داسي /ژ/ ايسيږي او چې لا نوره هم پسې درنده سي يو ټکئ پر سر او بل تر لاندې داسي /ز، ږ/ ورته کښل کيږي. کله چې بې ټکو /س/ درونډ سي، يو ټکئ پر سر او بل تر لاندې ورکول کيږي چې داسي /ښ/ ايسيږي.

ج: خوشحال خټک د فارسي رسم الخط و هر پښتو توري ته يو همزه /ء/ ورزيات کړئ دئ. تر /ژ/ لاندې همزه /ژ/ ئې /ږ/ کيږي، او تر /ش/ لاندې همزه /ش/ ئې /ښ/ کيږي.

د پير روښان پښتو توري ديرلس دي، خو د اخوند درويزه او خوشحال خټک پښتو توري بيا دوولس دي. پير روښان /نګ/ لکه په ملنګ کښې لا هم يو ږوغ يا توري بللئ ؤ.

شيخ دولت چې د پير روښان د زمانې سړی ؤ، د دء د جوړو کړو تورو شمېر په يوه فرد کښې داسي ښوولي:

افغاني لفظ مشکل ؤ لوست کوينس نه شو

ورته وشوه کننده دیارلس حرفونه
که نه ګانه (فرض محال) دغه اوسنۍ ختیځه پښتو هم هغه زمان د پیر روښان، اخوند درویزه او خوشحال په وختو کښې ویله کېدلای، دوی به و پښتو ته دوولس یا دیرلس توري ورجوړ کړي نه وای، بل لا به ئې نهه توري ورجوړ کړي وای چي /ږ، ړ، ښ/ به پکښې نه وای. دوی به څلور توري یا اووه توري ورته جوړ کړي وای. دغه څلور به /ټ، ډ، ړ/، او /ڼ/ وای، یا هم به ورسره /پ، چ/ او /ګ/ وای. د /څ/ او /ځ/ وینګ به په اصلي شکل سره ډېر لږ وي. خو سره له پخواني لیکدوده او د لوېدیځې لهجې د وینګ تر اغېز لاندې ئې آن چي ویاندان لا څوک: سوک، او څنګه: سنګه وایي. خو ښایي چي پخواني وینګ دي ئې بیا هم په ځینو لهجو کښې ساتل سوئ وي (د نورو پښتو تورو د کښنګ له پاره ئې وینئ د لیکوال "معیاري پښتو" ۶۱ – ۶۵ مخ).

وړاندني درې سره لیکدودونه په ختیځه لره و بره پښتیانا کښې جوړ سوي دي. نور نو د دغو له مخې څخه تاسي پخپله قضاوت کولای سئ چي دغه تور ي د ختیځې کلاسیکي پښتو داسي ږوغونه ادا کوي لکه نن چي په لوېدیځه لهجه کښې ویل کېږي، یا که د اوسنۍ ختیځې لهجې ږوغونه ښووي؟

۲ – بل دلیل او ثبوت ئې د پښتو کلاسیکو شعراوو دېوانونه یا د دوی اشعار دي، البته په اصلي شکل سره، نه په لاس وهلي مسخ کړل سوي شکل سره لکه اوس چي لا هم دغه د لاس وهني عملیه روانه ده.

۳ – درېیم دلیل او ثبوت ئې دا دئ چي قاضي محمدسلیم سالم په خپل کتاب "صفتنامهٔ درویش محمد خان غازي" کښې په لغمان کښې یو قوم د "غرغشتي" په نامه سره یاد کړئ دئ. د دغه نامه پښتو لیکل "غرغوښتي" کېږي. نن ورځ په لغمان کښې د "غرغشتي" یا "غرغوښتي" په نامه سره یو قوم نور نسته، خو پر ځای باندي ئې هغه قوم د "خروټي" په نامه سره سته. د "غرغوښتي" نوم په پهختو او هم بیا په پختو لهجو کښې ښېله "خروټي" څخه بل راز ویل کېدلای نه سي او "غرغښت" ته "غرخت" ویل کېږي.

د محمد ظهیرالدین بابر نمسی محمد حکیم د همایون زوی او د جلال الدین اکبر ورور، چي د ۹۷۲ او ۹۹۳ هجري قمري (۱۵۶۲ – ۱۵۸۵م) تر منځ له سینده تر هندوکشه پوري د کابل واکمن ؤ، درویش محمد خان ئې و لغمان ته لېږلئ ؤ څو د الیشنګ له کافرانو سره جنګېدلئ او د هغویو د وژنو او ژوبلونو مخنیوی ئې کړئ وي. دغو کافرانو مسلمانان د رتبې ګټلو له پاره وژل.

۴ – و ما ته رامعلوم وروستنی دلیل او ثبوت د "پېښور" د نامه شهادت دئ چي تر ۱۲۰۰ هجري قمري دمخه ئې وینګ یا تلفظ کټ مټ داسي ؤ لکه نن ورځ چي په کندهار کښې دئ. د دغه وینګ د ثبوت له پاره به شواهد په وروسته کښې پراو پر پراو باندي دروړاندي کړل سي.

## د پښتنو د نامه په اړوند د پوهانو اندونه:

موږ دا ولیدل چي د هندي شکله پکتیس Paktis او پکتویس Paktues نومونه به څنګه او له کومه لغوي شکله څخه راټوکېدلي ول چي په پختیا، پکتیا، او پکتیکا سره پېژندل سوي دي. اوس له دې وروستنۍ اساسي پوښتني سره مخامخ کېږو چي نو دغه د کندهار د وینګ پښتو، پښتون، او پښتیانا نومونه څنګه له څه څخه راټوکېدلي دي؟ دا چي دغه نومونه ترمخه څنګه ول او پښتانه په

پخوا کښې په دغه اوسني نامه سره که په بل نامه سره پېژندل کېدل؟ د دغه پخوانۍ نامه پېژندنه به زمونږ غوټه او غوړاشه راوسپړي.

سید جمال الدین افغان پخپل "د افغان تاریخ" (تتمة البیان فی تاریخ الافغان) کښې تر هر څه دمخه د پښتنو و نامه ته توجه کړې ده او داسي ئې پر کښلي دي: "ځیني قبیلې د پښتنو لکه اوسېدونکي د کندهار او غزنې ځان "پښتو[ن] او پښتان" بولي چي اولني نامه ته څرمه دئ. د هندوستان خلک ئې "پټهان" بولي. اوسېدونکي د خوست او کورم او باجوړ پر ځان پختو [ن] او پختان" نوم ایږدي. که په ژور نظر وکتل سي او په نژدېوالي کي د دغو لوړو لفظونو دقت وکړه سي دا خیال کېږي چي ریښه د دې ټولو الفاظو یوه ده او افغان او اوغان و پټهان له پختان محرف دي، او دا سمه ده چي پختان او پښتان له پاشتان څخه اخستي سوي دي. "پاشتان" په نیشاپور کي یو کلئ دئ. یا له "بشت" څخه چي یو د خراسان له ښارو څخه دئ اخیستي سوي دي، او هم د فارسي ژبې د قانونه سره سم د جمع حروف (الف) او (نون) پر زیات سوي دي. ځکه چي دوی په ښهر کي استوګه کوله. وروسته تر پرېښودو د هغه ځای په نامه یاد کړه سوه. "و" په پښتو او پختو کي له الف او نون څخه محرف او د نسبت دپاره دئ لکه په عربي ژبه کي چي "ي" ده، په جوړېدو کي د جمع حذف سوی دئ او احتمال لري چي دا دوه لفظونه د "بشیت" د لفظ څخه اخسته سوي وي. "بشیت" د فلسطین له کلو څخه یو کلئ دئ چي په دې احتمال کي دوی له بني اسرائیلو څخه چي وروسته تر دې بحث ځني کوو، وبولو" (سید جمال الدین افغان: تتمة البیان فی تاریخ الافغان، ۱۳۸۶: ۱۱).

دی د خراسان له نیشاپور سره "بشت، بشیت، باشتان" او د فلسطین "بشیت" نومونه یادوي، خو د پاس کونړ "پشت Pashat" بیا نه یادوي چیري چي هم سیدان اوسیږي.

په حیات افغاني کښې داسي کښل سوي دي: "د پښتون د کلمې د تسمیې وجه د یوه معتبر او باوري روایت له مخې داسي ښودل کیږي چي پښت د یوې سیمي نوم دئ چي په غور کښې موقعیت لري او په لومړي سر کي د دغه قوم لوی نیکه قیس عبدالرشید پکښې استوګنه درلوده. د پښت په سیمه کښې د اوسېدلو له کبله هغه خلک د پښتون په نامه سره مشهور او د ژبې نوم ئې هم کښېښودل سو. یا دا چي پښتون پشته ته منسوب دئ چي دغه د غونډۍ په معنی دئ. له دې کبله چي دغه خلګ په غرنیو سیمو کښې لکه غورات، سلیمان غر، یا کسې غر، په غرونو کښې اوسېدل، نو ځکه دغه قوم د لږ لفظي تصرف په وجه په پښتون سره ونومول سول. له دې کبله د روهیله او پښتون تر منځ ډېر مطابقت سته. نو پر دې اساس باندي پښتون مانا غرنی دئ" (حیات افغاني: ترجمه ۱۳۷۰: ۱۸۱).

د ختیځې لیري پښتونخوا تکړه مؤرخ فاضل بهادر شاه ظفر کاکاخېل په خپل کتاب "پښتانه د تاریخ په رڼا کښې" د پښتنو پر نامه باندي یو مفصل بیان لري چي زه به ئې د لوستونکو له پاره په اوږده او پساره سره ځني راوخلم:

"پشتون، پختون، پښتون: لکه دمخه چي مو وویل د پښتون قام هر فرد خپل ځان ته پښتون وایي نه افغان(۱). د دې لفظ پښتون تلفظ د پښتنو د مشهورو لهجو مطابق دوه ډوله کیږي: پشتون او پختون. د لفظ پښتون په تاریخي څېړني کښې مونږ د دې لفظ سراغ

د رګویدا په (پکتها) د اوستا په (بخدي) او د
هیرودوټس په (پکتویس) کښي موندلئ دئ.
او لکه چي وئیلي شوي دي د لفظ (پکتویس)
او پښتون مطابقت اکثرو مستشرقینو لکه
ټرومپ او ګریرسن او ځني نورو منلی دی.
لیکن د اوسني زمانې ځني مستشرقین چي
سرفهرست ئې د (اوسلو) پوهنتون ښاغلی
ډاکټر مارګن سټرن دی، د دې نه اختلاف
کوي. د دوی دا اختلاف د دې لفظ (پښتون)
په تلفظ مبنی دی. د دوی په خیال کښي د
پښتون قام قدیمي او کلاسیکي نوم پشتون په
(ش) دی نه پختون. د پښتون لفظ د دوی په
رائي کښي نسبتاً د وروستني زمانې او یو
عوامي نوم دی. په دې لړ کښي د کیمبریج
پوهنتون ډاکټر بیلي هم د ښاغلي مارګن سټرن
هم خیال دی. یعني هغه هم د لفظ پشتون
قدامت او اصلیت مني. او ځکه د پکتویس او
پښتون د تاریخي مطابقت منلو ته غاړه نږدي.

د ښاغلي مارګن سټرن په خیال کښي
پښتانه هغه خلق دي چي د هغوی اسلاف
یوناني لیکوال بطلیموس د "پرستي" یا
"پرستائي" یا "پارستائي" (Parsthyes) په
نامه ذکر کړی دی. دا خلق د پاروپامیز په لړ
کښې اوسېدل. دا ښاغلی لیکوال د "پشتون"
او "پرستی یا پرستائی" په لړ کښي داسي
وائي چي د فارسي ژبي لفظ "پشت" او د
اوستا ژبي لفظ "پرهستی Parsthee" او د
سنسکریت ژبي لفظ (Prstha) هم معنی دی.
دا ښاغلی وائی چي په اوستائی او
سنسکریت ژبو کښي چي د (رس rs) مرکب
توری کوم ځای استعمال شوی دی، په
موجوده فارسي – پښتو و غیره ژبو کښی هغه
په (ښ) بدلېږي. نو د دې اصول په رڼا کښي د
(پ، رس، تی یا پ، رس، تا تی) نه "پشتی –
پشتا" جوړېدی شي او دغه پشتي، پشتا،
پشتی وروستو "پشتین" او بیا "پشتون"
شوی دی او د ده او د ځینو نورو عالمانو دا هم
خیال دی چی په موجوده فارسی و غیره ژبو
کښی د (ش) شکل د (خ) په نسبت زیات قدیم
دی.

لیکن د مارګن سټرن د دې نظریی سره
ښاغلی کیرو اتفاق نه لری او داسې وائی چي
په لفظ پښتون کښي (ش) ته په (خ) باندي
ترجیح ورکول د کابل ریډیو د پروپیګنډی اثر
دی. ځکه چی دوی د قندهار لهجې (نرمي
لهجې) ته ترجیح ورکوي. لیکن دا ظاهره ده
چي د هیرودوټس پکتویس د قندهار د
شاوخوا استوګن نه وو. بلکه د ګندهارا
استوګن وو، چی دوی اوس هم په سخته لهجه
کښي خبري کوی. او دی خبری ته هم فکر په
کار دی چی په (خ) باندي (ش) ته ترجیح
ورکول یا داسی به اووایو چي سختی لهجې
باندي نرمی لهجی ته ترجیح ورکول د مردان
او صوابئ د یوسفزو د رائي نظر انداز کول
دی. ځکه چه دوی خپله لهجه په ټولو کښی
غوره ګڼی. د دې وینا نه پس دا ښاغلی د
سختی لهجی د قدامت په لړ کښی د لفظ
خواسپس kho-Aspas (رود کونړ) نه
استشهاد کوی. د ښاغلی کیرو د لوئی
علمیت او فضیلت د اعتراف او احترام باوجود
د هغه د دی خیالاتو سره اتفاق نشی کېدی. په
دی لړ کښی اول دی ته فکر په کار دی چه د
لفظ پشتون د قدامت په لړ کښی چه ښاغلی
مارګن سټرن او د هغه هم خیالو څه وئیلی دی
هغه ئې د خپلو تحقیقاتو په رڼا کښی وئیلی
دی. په داسي لویو فاضلانو چی د هغوی رائی
احترام ښاغلي کیرو پخپله هم کوی، د چا د
پروپیګنډی هیڅ اثر نشی کېدلی. دا خبره هم
وزن نه لری چه د یو خاصي علاقې خلق خپلی
لهجی ته یا خپل ځان ته په یو خاص [نظر]

ګوری نو نور خلق دی هم په پټو سترګو د هغوی د رائې سره اتفاق اوکړی. داسی به څوک وی چی هغوی به خپله ژبه او خپله لهجه د نورو نه غوره نه ګڼی – کارغه چي کارغه [تور] دی هم خپل بچی د هر چا نه سپین ګڼی او "شیشګی" [جیړګی] هم خپل بچی ته د هر چا نه پوست او نرم وائی.

اوس به د خواسپس kho~Aspas جاج واخلو. دا ښاغلی وائی چي د "رود کونړ" د سکندر د زمانې لیکوال د "خواسپس" یعني (د ښو اسونو Good Horses) په لفظ ذکر کړی ده. نو په دی لفظ کښی د (خو) موجودګی د پښتو د سختی لهجې په قدامت یو شهادت دی. د دې سره دا خبره دا ښاغلی پخپله هم منی، چه د سکندر د زمانی نه ډېر وړاندی هیروډوټس په ایران کښي د "رود قارون" نامه هم په دی لفظ (خواسپس kho~Aspas) ذکر کړی ده. په دې لړ کښی به زه دومره اووایم چه دا لفظ (خو) د پښتو په رسم الخط کښی (ښو) لیکلی شی نه (خو)[...]" (ظفر کاکاخېل ۱۹۹۹: ۸۷ – ۹۰).

زما کورټ نه په یادیږي چي د لوی سکندر منشیانو دي "خواسپس kho~Aspas" د (ښه آس) په مانا سره یاد کړئ وي. سیند آس کېدلای نه سي. د دغه نامه شننه داسي ده: "د "کاوفو" یو بل معادل خو مروړلئ شکل "خواسپه Kho~aspas" دئ. د دغه نامه مصداق د کونړ سین دئ. د "خواسپه" بشپړ اصلي شکل ئې عبارت له "کاوفو اوسپه Kaufu~ospas" څخه دئ. دغه نوم د "کاوسترسیند" ډک سیند، توند سیند مفهوم ورکوي. ای د کابل او کونړ دواړه سیندونه د "کاو (هندوکش)" سیندونه دي، خو د کونړ سین تر کابل سیند (ستر رود) یا (توند رود) یا (ډک رود) باله سوئ دئ" (پالوال، د پښتنو نوئ پخواني تاریخ، ۱۹۹۴: ۳۸۳).

استاد محمدانور نومیالي د ډاکټر بیلیو یوه په زړه پوري او ګټوره نظریه وراخستې ده چي د دې "د پښتنو د ملي نامه مسئله" مبحث پایلامه ئې جوړوي، و موږ ته هم په زړه پوري او د استناد وړ ده. زه ئې دغه پایلامه کټ مټ څني راپوروم څو خپل بیان مي نور هم په ټینګ او پیاوړئ کړئ وي.

"دا چي د پښتون، پښتو، پښتونوالي، او پښتونخوا بېلابېل کلمات له کومي ګډي ریښې څخه راوتلي او د لرغوني تاریخ له کومي نېټې څخه د ژبي بهیر ته راغلي دي د ډاکټر بیلیو په عقیده له ډېري پخوانۍ زمانې سره اړه لري. ده پخپل اثر کي چي (د افغانستان د اتنوګرافۍ په باب یوه پلټنه) نومېږي داسي څرګندوني کړي دي چي د افغانستان د ختیزي برخي ټوله حوزه په پخوانیو بېلابېلو ژبو او لهجو کي د (غرونو، د غرنیو سیمو) په نامه او وګړي ئې د (غروالو) یا (غرنیانو) په نامه بلل سوي دي. دغه حوزه چي د قدیمي پرشیایي امپراتورۍ په اداري وېش کي ئې اوومه (ساتراپي) جوړوله، نو د پرشیایي ژبي له ادا سره سم د (پښته) کلمه ورته استعمالېده چي د غونډۍ، شاګۍ، او غرګي معنا ورکوي. د پارسي (پښته) چي د پښتو په نرمه لهجه کي (پښته) او په زیږه لهجه کي (پخته) یا (پوخته) تلفظ کېږي، د پښتون، پختون، یا پوختون لغوي مورینه ګڼله کېږي. تر میلاد څو پېړۍ پخوا چي دغه ورشو تر پرشیایي نفوذ لاندي وه، نو د پښته، پښته، یا پخته او پوخته نامه ته منسوب د دې غرنۍ سیمي اولسونه د اوسېدني د ځای له کبله د

پښتون، پختون یا پوختون په نامه بلله کېدله. د دې له قوله د دغه اشتقاق مربوطي کلمې (پښتونخوا) یا د هندي ژبې په سلیقه (پښتون - کا) (یعني د پښتانه مربوط) د همدې سیمي د افادې له پاره له ډېر وختي څخه رواج درلود. څکه تر میلاد څلور نیمي پېړۍ دمخه د همدې کلمې د تلفظ په تعقیب یا تقلید د هیرودوت له خوا د (پکتیکا) نوم په لرغوني تاریخ کي ثبت سوئ دئ" (نومیالی ۱۳۸٦: ۴۵).

د ډاکټر بیلیو نظر په زړه پوري دئ چي د هیرودوت و پکتیس او پکتویس ته په بله واسطه سره له بلي لاري څخه رسېدلئ دئ. د دې نظر باید څه نور هم روښانه کړه سي. که دې د پرشیا پر ځای باندي پرثیا یاده کړې وای، و واقعیت ته به نور هم ورنژدې سوئ وای. یو دا چي د "پرثیا" ورېښن څېر "پرثووا ParƟuva" ؤ یا لا دئ او له دغه شکله څخه "پرثووان" او "پرثووانه" نومونو اشتقاق موندلئ دئ. بیا له دغو څېړونو څخه د ساکاني ژبي تر اغېز لاندي "پښتون" او "پښتانه" راټوکېدلي دي. په دغي ساکاني ژبي کښي /رث/ په /ښت/ سره اووښتي دي. دغه پرثیا او پرثووا نومونه د ایران په شمال ختیځ کښي پر هغه ولایت باندي اطلاق کېدل چي نن ورځ "خراسان" نومېږي. نو د اوسنیو پښتنو نوم د خراسان له پخواني نامه "پرثووا" څخه اخسته سوئ دئ.

بل دا چي د ډاکټر والټر بیلیو "پشته"، سید جمال الدین هم په خپل کتاب "تتمة البیان فی تاریخ الافغان" کښي د پښتنو د نامه اصل او ریښه "پشته" بللئ دئ او د حیات خان "پښت" او "پشته" هم داسي دئ. زه دا ویلای نه سم چي دوی دغه ریښه د "پښتنو" د نامه له اوسني شکله څخه استنباط کړې (اخیستې) ده که له پخواني شکله "پرثه" څخه چي د ساکاني ژبي تر اغېز لاندي "پښته" کېږي یا لا داسي سوئ دئ. دغه نومونه "د پښتنو نوی پخوانی تاریخ" په پیللوستي کښي بیان سوي دي. دغه کتاب کمپیوټري ټایپول د ۱۹۹۴ په سپټمبر کښي بشپړ کړل سوي دي، خو کتاب لا تر اوسه پوري چاپ سوئ نه دئ. څکه چي هم ئې اسناد راڅخه ورل سوي دي او هم دغه کمپیوټر رابند کړل سوئ دئ. آیا دغه خیانت نه دئ. داسي ډېر خیانتونه راسره سوي دي.

**مساعد شرایط:**

د جرمني د میونشن ښار موزیم په ۱۹۸۵م کال کښي د راډیو او تلویژون له لاري څخه پر خلګو باندي ږغ وکړ چي که به څوک د افغانستان سامان، اسباب، آلات، لوښي، پسول، یا بل څه لري، هغه دي و موزیم ته وروړي چي د خلکو له پاره و ننداري ته وړاندي کړل سي. دا وخت افغانستان د شورویانو تر اشغال لاندي ؤ. و خلکو ته افغانستان تر پخوا لا اوس هم نور یو په زړه پوري تاریخي مرموز داستان ګرځېدلئ ؤ. خلګو و موزیم ته دونده ډېر شیان وروړل چي د ایښوولو ځای ئې نه ؤ. له پخوا څخه لا چي جرمنیان و افغانستان ته یا د کار له پاره اغلي ول او هورې سوغاتونه ورکړل سوي ول یا سیلانیان غوندي تللي ول او په بازار کښي ئې سوغاتونه پېرودلي ول. دغه آثار له نیکونو او پلرونو څخه و لمسیانو او زامنو ته په میراث ورپاته سوي ول. دا ټول بې نوم او بې نښانه ول. څوک نه پرې پوهېدل چي څه نومېدل او له دغو څخه څه کار اخسته کېدئ. څکه ئې نو د ډاکټر پیټر سنای په ورپېژندني سره پر ما باندي ږغ وکړ چي ته راسه، نوم ئې راته وښووه، ځای ئې راته وښووه، او کاروبار ئې راته وښووه.

د غزني او ځينو نورو ځايو په لرغونو کيندنو کښي داسي سامان، آلات، لوښي يا نور شيان ول چي ما نه پېژندل. له نېکه مرغه په موزيم کښي داسي لوی ليکلي او مصور کتابونه ول چي زما غوټه ئې راوسپړله. په دغو کتابونو کښي چي زه به هره پلا په يو څه يا بل څه پسي ګرځېدلم، د يو راز ايکيو پر تصويرونو باندي به هم پېښ سوم چي د سوکوی او پېژندليک يا مخ و شا تصويرونه ئې په دغو کتابونو کښي چاپ سوي ول. ما چي به د دغو شاهانو و سوکوی ته وکتل په زړه کښي به مي راوګرځېدل چي دا خو داسي ايسي لکه پښتانه چي به ول. څو دغه ايکی مي روښاني ليدلي وي د موزيم له مشر ډاکټر والټر راونيک څخه مي غټوونکي ښيښې غوښتنه وکړه. ده هم يوه داسي غټوونکې ښيښه راکړه چي د ميز په اړخ پوري ټينګېدله او څراغ ئې هم لاره. دا يوې او بلي خوا ته او هم مخ او شا ته ګرځول کېدای هم سوای لکه سرمېزي څراغ. د ادهم پوپ Udham Pope او اکرمن Ackarman په کتاب کښي چي د ډيرو پښتني شاهانو د ايکيو تصويرونه ئې چاپ کړي دي دا مي وليدل چي يو شمېر شاهان ئې څوڼې لري. اوس نو په ټينګه باوري سوم چي دوی هرومرو پښتانه ول. ما چي به د کتاب د پاڼو و پل ليکونو ته وکتل، د پېژندني له پاره به ئې ورته کښلي ول چي دغه ايکی د پرثيين The Parthians دي. هره پلا چي به مي ئې داسي نوم ښوونه وليدله ما به له ځانه سره ويل هغوی پښتانه دي، خو دوی ئې نوم غلط کړئ دئ.

پرثوانه:

کله چي د موزيم د ننداروی شيانو کار و پای ته رسېدلئ ؤ، او کله چي به ډله ئيز کسان راغلل، ما به يو بيان پر ورکاوه، نور نو د ډېرليکونو (کتيبو) په کتابونو کښي د پښتنو په نامه پسي يوپ (په غوټه) ګرځېدم. د اسوريانو، وان جهيل (هيتيانو)، خالديانو، بابلونيانو، پارسيانو، او نورو کتيبو ترجمې مي سر تر پايه پسي ولټولې، خو د پښتنو نوم چي زه پسي ګرځېدم، نه پيدا کېدئ. ډېر ستړئ سوئ او ډېر مايوس سوئ وم. يو ښام چي خواړه مي خوړل تر وروستنۍ ګولې دمخه نابوبره دا په زړه کښي راوګرځېدل که نه ګانه دغه د پرثيين Parthian نوم په پښتانه سره اووښتئ دا به بيا څنګه وي؟ په دغه لټه کښي سوم. په لږ ګړي کښي د فارسي د (پرسان) لغت په زړه کښي راوګرځېدئ چي په پښتو کښي په (پوښتنه) سره اوړي. زه له چوکۍ څخه داسي اوچت ولاړ سوم، په خونه کښي پرله وګرځېدم او بيا مي د چوکۍ پر تکې باندي لېڅي کښېښوول او زنه مي پر ولګوله چي اوس نو بايد څه وکم.

په سبا سهار په شنه خړه زه په خپل دفتر کښي ناست وم. په هر کتاب کښي چي به مي د پرثيين Parthian په اړوند هر څه موندلای سوای، هغه مي ځني ټاپېول. ما فکر کاوه چي زه به يوه شل - پنځه ويشت مخيزه مقاله پر وکښلای سم. خو کله چي به مي دغه نوټونه اخستل، ځينو ليکوالانو به ډېر پخواني کتابونه ماخذ ورکړي ول چي ما هغه په موزيم کښي موندلای نه سوای، ځکه مي نو د موزيم کار پرېښاوه او بيرته و هايډلبرګ ته ستون سوم. په ټول جرمني کښي او بالخصوص په هايډلبرګ کښي چي زه ورسره بلد وم، د علمي تحقيق له پاره خورا ښه زمينه مساعده ده. هره څانګه د ځان له پاره بېل غني مسلکي کتابتون لري. زه په درو - څلورو دغسي کتابتونونو کښي يو په بل پسې په کار بوخت سوم. پخواني يوناني او لاتين کتابونه مي لوستل او

چي په جرمني ترجمه سوي ول نو ټونه مي ځني اخيستل.

په يوه مقاله کښي مي پر پښتنو باندي د پروفيسور ګيورګ مورګن ستيرنه مقاله ولوستله. دا په دغه مقاله کښي په اسلامي دائرة المعارف کښي و خپلي بلي مقالې ته حواله ورکړې ده. ما چي دغه مقاله په دائرة المعارف کښي ولوستله، هورې ئې بيا په AO کښي و خپلي يوې بلي مقالې ته حواله ورکړې ده. څنګه چي ما AO نه پېژندله، نو ښه ډېر پسې وګرځېدم، خو بل چيري مي هم پيدا نه کړای سوای. بيا مي و خپل يوه دوست ته چي د بشرپوهني Ethnology په څانګه کښي استاد و، ډاکټر سنای Dr. Peter Snoy ته يوه شپه تليفون وروکړ چي پروفيسور مورګن ستيرنه په AO کښي و خپلي يوې مقالې ته حواله ورکړې ده. زه دغه AO نه پېژنم. ده راته وويل چي دغه Acta Orientalia يوه مجله ده.

په دغه اکتا اورنتاليا کښي زما له پاره د پروفيسور مارګن ستيرنه ډېره په زړه پوري مقاله ستله. ده پښتو اشتقاقونه Pashto Etymology کتاب کښلئ دئ چي ده ئې يو ټوک و ما ته هم راکړئ و. هغه کتاب ما و پوهاند رشاد صاحب ته ورکړئ و. چي له ده سره پسي پاته سو. که له ما سره وای اوس به زما له ډېرو نورو کتابو سره راڅخه تروښول سوئ وای. په هغه مقاله کښي پروفيسور مارګن ستيرنه د يوه بل عالم چي پر اورمړي باندي ئې کتاب کښلئ دئ او له بده مرغه چاپ سوئ نه دئ و پروفيسور مارګن ستيرنه ته ليک کښلئ دئ چي تاسي د پښتانه نوم له (؟) څخه مشتق بللئ دئ. خو دغه نوم د (رس) له اووښتني څخه په (ښت) سره و منځ ته راغلئ دئ. ثبوت ئې هم هغه د (پرسان) اووښتنه په (پوښتنه) سره ورکړئ دئ. پروفيسور مورګن ستيرنه په خپله مقاله کښي د هغه تر ليک وړاندي کولو وروسته کښلي دي چي د دغه ليک تر رسېدني دمخه دي هم و دغي نتيجې ته رسېدلئ و او د هغه پر ليک ئې نوره روڼا هم اچولې ده. ای داسي نور مثالونه ئې هم وړاندي کړي دي. (ما دغه موضوع "د پښتنو نوئ پخوانی تاريخ" په لومړني ټوک کښي چي په انګليسي مي کښلئ دئ، بيان کړې ده. نو ځيني نومونه يا نور څه چي زما اوس هېر سوي دي هورې به ګوندي ساتلي وي. هغه کمپيوټر مي اوس رابند کړل سوئ دئ. او زه ئې نه پرانيستلای سم او نه اخستنه ځني کولای سم).

څوک به وايي چي تا خو يوازي يو مثال وړاندي کړئ دئ او پښتانه وايي چي "په يوه ګل سره خو نه پسرلی کيږي" رشتيا هم، ما په لومړني ټوک کښي چي وړاندي مي ئې يادونه وکړه له اوستا څخه ډېر مثالونه وړاندي کړي دي چي هم سپک ږغي او هم دروند ږغي پکښي سته. د پښتو سپک ږغئ مثال مي درکړئ دئ او دروند ږغئ مثال ئې د فارسي "ارزن" دئ چي په پښتو کښي په "ږدن، ايږدن" سره اوړي. دغه مانا /- رس -/ په سپک ږغي /- ښت -/ سره اوړي او /- رز -/ په دروند ږغي /-ږد -/ سره. دا هم بايد وويل سي چي دغه اووښتون د /- رس -/ او /- ښت -/ يا /- رز -/ او /- ږد -/ تر منځ نه و، بل لا د /- رث -/ او /- ښت -/ يا /- رذ -/ او /-ږد-/ تر منځ و چي اوس په فارسي کښي /ث/ په /س/ او /ذ/ په /ز/ سره اووښتي دي. بل نو پروفيسور مارګن ستيرنه هم يو شمېر نور مثالونه وړاندي کړي دي چي ما په کتاب کښي ځني رااخيستي دي. زه ئې

اوس پر اوز نورو مثالونو باندي هم پېښ سوئ یم، چي داسي دي:

| | |
|---|---|
| دراز: | اوږد |
| لرزیدن: | رېږدېدنه |
| خرس، هرس، ایر: | یږ(د) |
| ترس: | تېښته |
| ترسیدن: | تښتېدنه |
| خوا[ر]ستن: | غوښتنه |

اوس پوښتنه دا ده چي داسي ولي پېښه سوې ده؟ دغه اووښتون د ژبي د خپلو ږغېدونکو له خوا څخه پېښېدلای نه سوای. نو هرومرو یا پښتانه په نورو ګډ سوي ول، یا نور په پښتنو ګډ سوي ول او دغه اووښتون ئې پېښ کړئ دئ. د دغه اووښتون په پایلامه کښي د پرثوي (پخوانۍ پښتو) /ث/ او /ذ/ دوارهٔ ورک سوي دي او پر ځای باندي ئې /ښ/ او /ږ/ راټوکېدلي دي او له "پرثوي" څخه "پښتو" جوړه سوې ده. د حضرت عیسی تر میلاد (زېږېدني) څه وړاندي وروسته (په شاوخوا کښي) مغولانو یا اېغورو (ترکانو) د چین له اوسني لوېدیځ څخه ساکان او الازون (الیزیان؟) وایستل، او له شمال څخه ئې د سهېل و خوا ته پسي راواخیستل. دوی ترمخه د کابل ناوې له لاري څخه و هند ته تېرېدل. خو کله چي په اویا میلادي کښي یا. تر دغه هم وروسته په کابل ناوه کښي د یوناني شاهۍ پر ځای باندي کوشان شاهي جوړه سوه، د ساکانو د تېرېدني لار ئې بنده کړه. ځکه نو الازون او ساکان مجبور سول چي په افغانستان کښي پاته سي او له پرثووانو سره ګډوډ سي. د دوی د دغه ګډوډون په پایلامه کښي /–رث–/ په /– ښت–/ سره او /–رذ– / په /–ږد–/ سره اووښتي دي. ای دغه کار ساکانو او الازونو کړئ دئ. دغه راز به خود نور هم ډېر تغیرات په ژبه کښي پېښ سوي وي، خو له ما سره ئې د نور څه ځرک نسته. دغه نژدې کټ مټ داسي ګډوډون ۀ لکه تر ۱۱۵۰ هـ ق وروسته چي له سړبنو، غرغوښتو، او کرلاڼیو سره د بېټنیو، خلجیانو او تراډنیانو قبایلو له ګډوډون څخه راپیدا سوئ دئ (بېټنیان هم خلجیان ول، خو د ترنک ناوې خلجیان بیا بېټنیان نه ول). په دواړو ګډوډونونو کښي پرثوي او بیا پښتو خورا ډېر اووښتون موندلئ دئ (تراډنیان مراد له هغو قبایلو څخه دئ چي په دغه تراډه سیمه کښي اوسېږي چي له سهیلي وزیرستانه څخه تر میدان ښاره پوري غزېدلې ده).

ترکان په دوی (الازونو او ساکانو) پسې تر هنده پوري ورسېدل. ترکمنان، سلجوقیان، او ازبکان تر شا په پسې ول. د مغولانو دغه تهاجمي مهاجرت د میلاد له شاوخوا څخه د ظهیرالدین محمد بابر تر زمانې پوري (۹۱۰ – ۹۳۹هـ ق/ ۱۵۰۴ – ۱۵۳۰) د چنګېزخان او ګوډ تېمور پر لاس باندي دوام لارء. محدثین وایي چي جوج و ماجوج (د پرثووانو: ګوګ ماګوګ) تر قیامت دمخه راوزي. دوی له تاریخه څخه ناخبره بوی نه وړي چي د بغداد خلافت ئې چا ورنسکور کړ او د ابد له پاره ئې ور ورک کړ. هو، هغوی په ونه لنډیان ول، خو داسي لوېشتکیان هم نه ول لکه افسانو چي یاد کړي دي.

اوس به بالآخره د پېښور و نامه ته راسم. هغه وطن چي د کسپین بحیرې په ختیځ او سهېل کښي ۀ، چي اوس ترکمنستان او خراسان نومېږي، هغه زمان "پرثووا ParΘuva" نومېدئ او اوسېدونکي ئې "پرثووانه" بلل کېدل. خو په نورو ځایو کښي نوم "پرثه ParΘa" او "پرثوي ParΘoy" ۀ، یا "پرثوي" او "پرثه"، د مفرد او جمع شکلونو په اړوند ئې باوري نه یم. خو د پېښور

(پښاور) له نامه څخه ئې داسې ښکارېږي چي "پرثه" به ئې جمع شکل ؤ. نو دوی په لره پښتونخوا کښې د ځانو له پاره ودان کړئ ښار "پرثه پورا ParΘa-pura" بللئ ؤ. مانا د (پښتنو کلا) یا د پښتنو کلاوهلی ښار، چي په هندي مغولي زمانه کښې و (کلا) ته (کوټ) ویل کېدئ چیري چي به د دوی د سیمئیز حکومت غړي اوسېدل، او هم ئې دغه کوټ حکومتي مرکز ؤ.

د کوشانیانو په بادشاهي کښې د "پرثه پورا" نوم په "پروشه پورا Parusha-pura" سره اړاوء سوئ دئ. دغه مانا په کوشاني ژبه کښې د /ث/ ږوغ نه ؤ، او بل دا چي په کوشاني ژبه کښې /ث/ او /س/ په /ش/ سره اړول کېدل چي دغه عملیه په سیمه کښې تر اوسه پوري لا هم دوام لري. کله چي په وروسته کښې پښتانه بیرته پر سیمي باندي چاپېر سوي دي، دوی "پروشه پورا" نوم په "پښاور" او بیا د منځنۍ لهجې تر اغېز لاندي چي الف په /و/ او /و/ په /ی/ سره اړوي، دغه پښاو ئې په "پېښور" سره اړولئ دئ. بیهقي ئې په خپل تاریخ کښې پېښور په بشپړ شکلونو سره کښلئ دئ لکه پرشور، پرشاور، چي د نامه لومړنۍ /ر/ لا تر ٦٠٠ هـ پوري ساتلې او پر ځای وه. دوهمه /پ/ ئې ښایي د اسلام تر راتګ دمخه غړوبه سوې وي. ای پي په واو (پ – و) سره اووښتي وي، که نه ګانه په کابل کښې د کوشانیانو سته والئ او قدرت نه وای، او الازون او ساکان د کابل ناوې په خلګو سره هم ګډ سوي وای له "پرثه پورا ParΘa-pura" څخه به هم "پښته پورا Pasta-pura" جوړ سوئ وای نه د کوشانیانو "پروشه پورا Parusha-pura".

په ۱۱۵۰هجري قمري کښې چي د ترنک ناوې او غزني خلجیان او د کورمي بېټنیان و ختیځي پښتیانا ته د نادرقلي افشار په تاړاک کښې ورمهاجر سول، دوی دغه "پېښور" نوم د بېټنۍ لهجې "پهختو" په وساطت سره په "پېخور" سره اړولئ دئ او هم دغسي "پښتو" په "پختو" سره. د دغو مهاجرتونو په پایلامه کښې پښتو ژبي خورا ډېر او خورا زغرد تحولات موندلي دي چي یو شمېر نمونې ئې په "معیاري پښتو" کښې درکړل سوي دي. د دغو تحولاتو په پایلامه کښې، تر ۱۲۰۰هـ وروسته د پختو یوه بله نوې ختیځه لهجه راپیدا سوې ده.

والټر بیلیو، پروفیسور مارګن ستېرنه (د ګهیز سترګه)، پوهاند عبدالحی حبیبي، او هم نورو د پخوانیو نومونو بخدي، پکتویس او بیا د اوسنی پختو، پختون تر منځ هغه ورکه کړی Missing Link باندي رڼغېدلي نه دي چي دغه ستر ژبنی او لهجوي تحول ئې پېښ کړئ دئ. دغه ورکه کړی و ختیځي پښتیانا ته د ترنک ناوې د خلجیانو، ترادنیانو، او د کورمي – کوهاټ د بېټنیانو لېږد او له سرښنو، غرغښتو، او کرلانیانو سره د دوی ګډوډون ؤ چي سمدلاسه په اخښون بخښون سره اووښتئ دئ چي د دوی نسبي شجرې ئې ثبوت دئ چي ما ئې په "معیاري پښتو" کښې څرګندوءنه کړې ده. د دغه اخښون بخښون له ژبني تحول څخه هغه له پرثووانو سره د ساکانو او الازونو اغښون بخښون او هم ئې اړونده ژبنی تحول هم قیاس کېدای سي او هم حدس وهل کېدای سي. په مستنده توګه سره دغه کار داسي کېدای سي چي د اوستائي او پښتو لغاتونو معادل او موازات د فقه اللغه له مخي څخه وڅېړل سي. دغه کار تر څه انده پوري فرانسوي ژبو پوهانو جېمز دارمستېټر هم کړئ دئ.

هغه وړاندنئ اووښتون و ښادروان

پوهاند حبيبي ته داسي ايسولې وه چي دغه "پختو" به له پخوانۍ بخدوي، بخدو، بخدي او پکتويس سره اړه لري. زما ليکنه قطعاً د لوی استادا علامه پوهاند عبدالحي حبيبي صاحب سره په مخالفت کښي نه ده. زه و هغه ته ډېر احترام لرم. دلته اوز نظريې نوري هم وړاندي سوي دي، او خاص هم په دغه اړوند دي چي يوه د بلي سره په مخالفت کښي رامنځته سوې نه ده. بل نو زه هم پر دغي موضوع باندي سلابلا (تصادفاً) پيښ سوی يم. علمي حقايق په شخصياتو پوري اړه نه لري. علامه صاحب د پښتو او پښتنو او افغانستان له پاره دونه ارزښتناک کار کړئ دئ چي د کتابونو ارتفاع ئې د ده له وني سره سمه وه او دغه په تصوير سره ښوولې سوې ده او دی هم په ونه جګ سړی ؤ. و ده ته زما د درناوي له پاره کاڼئ نسته. سره له دې هم "حقيقت تر استاد رabaندي ګران دئ" خو زه نه افلاطون او نه هم ارسطو يم.

پای

د ح. رزمي ټولونه:

## ګل خبري

- اصل پت او وقار هغه دئ چي د نورو په بې توپيرۍ سره متاثره نه سي.
- ښه چانس په ژوند کي يو وار دروازه ټکوي.
- بې غيرته خلک تر خپل مرګ مخکي څو واره مړه کېږي.
- د زړېدو څخه شکايت مه کوه ځکه ډېر خلک د هغه چانس نه پيدا کوي.
- که غواړې خپله نړۍ بدله کړې نو خپل فکرونه دي بدل کړه.
- هغه کسان چي پر خپلو کوچنيو اشتباه ګانو باندي اعتراف کوي غواړي خپلي غټي غلطۍ پټي کړي.
- هيڅوک په هغه اندازه چي پخپله فکر کوي بدمرغه يا نېکمرغه نه دئ.
- هغه څوک چي تا په غوسه کولای سي تا فتح کولای هم سي.
- هغه څوک چي ببره ايجادوي نه سي کولای له بيري څخه ازاد ژوند وکړي.
- د تنګ نظر خاوندان معمولاً پراخه خوله لري.
- ښځه خوشحاله کېږي چي د هر شي په باب پوښتنه ځني وسي.
- ډېر خوشحاله خلک هغه دي چي د خپلي خوشحالۍ له پاره کوم خاص دليل نه لري خو فقط خوشحاله دي.
- د سولي په وخت کي اولادونه خپل مشران ښخوي خو د جګړې په وخت کي مشران خپل اولادونه خاورو ته سپاري.
- موږ يوازي هغه څوک هوښيار ګڼو چي زموږ سره سر ښوروي.
- د بايللو په وخت کي د ګټونکي اکټ کوه.
- د دې له پاره چي کارونه سم تر سره سي نو بايد کمېټه د داسي درو کسانو څخه جوړه سي چي دوه تنه ئې تل غير حاضر وي.

***

هارون خپل شعشعي/لندن

# د قاموس پوهني په رڼا کي
# د ښاغلي یوسفزي پر پاړسي - پښتو قاموس څو خبري

(دوهمه او وروستۍ برخه)

د همدې اصل په اړه د ښاغلي یوسفزي له قاموس څخه څو ژوندي مثالونه:

په (۴۸۲) مخ کي د «ساقط» تر عنوان لاندي د نقصان سوي اولاد مانا سمه نه ده؛ ځکه د نقصان سوي بچي له پاره باید د سِقط (siqt) کلیمه استعمال سي نه ساقط؛ لکه په «سقط جنین» کي . سقط کلیمه د سین په زوَر او پېښ (سَقط/ سُقط) هم راغلې ده (وګورئ عمید ۲: ۱۴۴۱). ساقط کلیمه په عربي کي د حذف سوي، ورک او هېر ماناوي هم لري (وګورئ: .Wehr ۴۱۵).

په (۷۳۶) مخ کي «مادام الحیات» ته کښل سوي دي: په ژوند کي یو ځل. دا مانا سمه نه ده. «مادام الحیات» له دوو برخو څخه ترکیب سوې کلیمه ده. «مادام» په خپله هم مرکبه کلیمه ده، چي له «ما» او «دام» څخه جوړه سوې ده. «ما» او «دام» دواړه په ګډه: تر هغه مهاله، تر هغه وخته او داسي نوري ماناوي لري. «حیات» کلیمه هم ټول خلګ پېژني، چي د ژوند په مانا ده. په دې ډول نو «مادام الحیات» یاني تر څو چي ژوندی یي (وي)، تر هغو چي پایي، د ژوند تر اخیره (وګورئ: عمید ۳: ۲۱۳۴).

– په دې قاموس کي د نوي قاموس لیکني له اصولو او قواعدو سره سم، د مترادفو ټکو د پېژندني او ځای بچتولو له پاره له کراس ریفرینس (cross-reference) څخه کار اخیستل سوی دئ، مثلاً «ساعي» کلیمه و «کوښا» ته ارجاع سوې ده. دا کار له یوې خوا لوستونکي له مترادفو ټکو سره اشنا کيي؛ او له بلي خوا د قاموسو د حجم د بېځایه زیاتوالي مخه نیسي. که د متضادو، متقاربو او اړونده ټکو په پېژندنه کي هم له دې اصل او قاعدې څخه کار واخیستل سي، له لوستونکو سره به د بېلابېلو ټکو په اسانه پېژندنه او موندنه کي ډېره لو مرسته وکيي؛ مثلاً د «استقراء» د ماناوو په پای کي دي ولیکل سي: وګ: قیاس یا استنتاج. یا د «تاسوعا» په پای کي دي وکښل سي: وګ: «عاشورا» او داسي نور.

– د دې قاموس یوه لو ښېګڼه دا ده، چي د زیاترو ټکو د مانا په توضیح او تشریح کې د پښتو ژبې د لویو او مهمو لهجو مغیره حالات ثبت کړي دي؛ مثلاً د «سابقاً» له پاره کښل سوي دي: په لرغوني وخت کي، په ړومبني وخت کي، پخوا، دمخه. دغه راز «آب خوردن» ته لیکل سوي دي: اوبه څښل، اوبه څکل، اوبه چکل. «څښل» د دې لغت اصلي او سپېڅلې بڼه ده. ښاغلي یوسفزي هم له دې اسیته د ماناوو په اوډنه کي لومړیتوب

ورکړی دئ. دې قاعدې ته باید تل د کلیمو د بېلابېلو ماناوو په اوډنه کي، دقیق او ژور پام وسي. په دې ارتباط یوه بله مهمه خبره دا ده، چي پښتو قاموس لیکونکی باید همېشه د قاموسي سرټکو په ماناوو کي د څېړني او پلټني ورشو پراخه وساتي؛ مثلاً «مردم» کلیمې ته په ترتیب سره: وګړي، خلګ/خلک، اولس/ ولس، خلق، عوام او داسي نور راوړي. اوله مانا د پښتو ژبي سپېڅلی ټکی دئ، چي زموږ په لرغونو متنو کي هم راغلی دئ؛ او تر اوسه هم زموږ د ځینو هیوادوالو پښتنو په ژبه کي ژوندی دئ. د خلګ/ خلک مفغن او د اولس/ ولس دخیل ټکي په پښتو لهجو کي مغیره تلفظونه دي. د «خلق» عربي کلیمه د پښتو په لرغوني او منځني ادب کي خورا ډېره کار سوې ده؛ تر اوسه یې هم زموږ ځیني پښتانه په همدې بڼه وایي. بالاخره زموږ کښته پښتانه د مردم یا خلګو له پاره «عوام» ټکی هم ډېر کاریي. په قاموس کي د دغه راز ټکو او مغیره حالاتو په لیکلو سره پر دې خوا افغانانو سربېره، دآخوا پښتنو علمي او ادبي ستونزي هم حلېږي. سربېره پر دې، دا کار د پښتو ژبي د لغوي زېرمي د پراخولو او د بېلابېلو لهجو په پېژندنه کي هم ډېره لو او په زړه پوري ونډه اخیستلای سي.

– باید تر وسه وسه کوښښ وسي، چي ګران او پېچلي ټکي له نسبتاً زیاتو تشریحاتو او ماناوو سره راوړو؛ او د عامو او اسانه ټکو په مانا کولو کي له زیاتو توضیحاتو څخه ډډه وکو؛ مثلاً په اول مخ کي د «آب دادن» ټکي ته ډېري ماناوي کښېښل سوي دي؛ لکه: اوبه ورکول، اوبول، پښول، خړوبول، اوبه ورکول، لندول، خیشتول، اوبه کول. زما په عقیده د «آب دادن» د تشریح له پاره د اوبول او اوبه ورکول ماناوي کافي دي؛ په دې دوو ماناوو کي ټولي ماناوي نغښتي دي؛ خو تر «آبیاري» لاندي کولای سو پر دغو دوو ماناوو سربېره، پښول او خړوبول هم وکاږو. په دریم (۳) مخ کي «آب سیاه» ته کښېښل سوي دي: توري اوبه ، د سترګو مرض. «د سترګو مرض» په یوازیتوب سره د قاموس لوستونکي ته هیڅ نه ورکیي. د قاموس لوستونکی باید پوه سي، چي «آب سیاه» د سترګو څه ډول ناجوړي یا مریضي ده؛ څه اعراض او علایم لري. په دې قاموس کي «آپاندیست » هم له دغه راز ټکو څخه دئ، چي باید د نخښو او ان علاج په باب ئې څه نا څه وویل سي . په (۴۸۰) مخ کي «سار» ټکي ته «شامتوره » کښېښل سوې ده. « شامتوره/ شمتوره/ شامتوله» د پښتو په مرکزي او ختیځه لهجه کي ډېره استعمالېږي، د جنوب لوېدیځي لهجې ویونکي نه په پوهېږي. زما په ګومان شامتوره/ شامتوله د مینا یو ډول دئ، چي په انګرېزي کې (starling, myna, mynah) بولي. په دې دلیل چي طبیعي موجودات (ژوي، بوټي او د انسانانو پر شاوخوا نور طبیعي مواد) د جغرافیایي موقعیت، جوي او اقلیمي شرایطو او داسي نورو عواملو له امله په خلګو کي بېلابېل نومونه لري یا دا چي د یوې سیمي طبیعي موجودات په بله سیمه کي له لویه سره نه پیدا کېږي، ځکه نو باید د دغسي شیانو د دقیقي او سهي پېژندني له پاره په نورو لهجو کي هم د هغو معادل ټکي وکښېښل سي یا ئې د بڼې او اسانه پېژندني له پاره په ساده ټکو، څو مهم اړخونه او خصوصیتونه هم بیان کړل سي. که نه نو د فرهنګ د استفادې ورشو څه نا څه تنګېږي. د افغانستان د علومو اکاډیمۍ په پښتو- پښتو تشریحي قاموس کې د «هوتک» کلیمې د تشریح له پاره، یوازي

دونه کښلي دي: «هوتک د پښتنو ستره قبیله ده» (امرخېل او نور، ۴: ۳۰۵۵). دا داسي مانا لري، لکه سړی چي د «پیل» د پېژندني له پاره ووایي: «پیل یو غټ حیوان دئ». مګر لویي قبیلې او غټ حیوانات لږ دي؟! زموږ په او هوښیار لوستونکي په دې ښه پوهېږي، چي دا جومله د قاموس د لوستونکو هیڅ درد نه دوا کیي. تا حقه ئې د قاموس حجم په زیات کړی دئ. حقیقت دا دئ، چي قاموس لیکونکي ځان ته زحمت نه دئ ورکړی، چي د هوتکو د تاریخي، جغرافیایي، ایتنوګرافیکي، دیموګرافیکي او ادبي اړخو په اړه لوستونکو ته څه نا څه مالومات وړاندي کي یا د پیل د ځینو مهمو او اساسي ځانګړتیاوو په باب د لوستونکو ذهن روښانه کي. لغتپوهان د قاموسي سرټکو د تعریفو په باره کي د جامعیت او مانعیت اصل ته اشاره کیي. د دې اصل له مخي باید تعریفونه له یوې خوا بشپړ او له بلې خوا په داسي ټکو او جوملو کښل سوي یي، چي له ورته شیانو سره د التباس او ګډوډۍ مشکل پېښ نه کي. ښاغلی یوسفزی باید همېشه په خپل قاموس کښي له داسي تعریفو څخه ډډه وکي.

– د لرغونو، ګرانو او نا اشنا ماناوو د توضیح او بیان له پاره کله ناکله د ځینو منظومو او منثورو شواهدو او مدارکو وړاندي کول هم بې ګټې کار نه دئ. په اول مخ کي «آباد» ټکي ته څو ماناوي کښل سوي دي. نوري ماناوي ئې ګرده واضح او روښانه دي؛ خو یوه مانا (کرل سوی) ئې ما ته نا اشنا ښکاره سوه. د داسي مانا د ملاتړ له پاره د ژبي له منظومو یا منثورو اثارو څخه د کوم سند او مدرک وړاندي کول، ګټور او په زړه پوري کار دئ. ما د اخور (آبخور/آخور) عامه او مروجه مانا (د بودګانو د خوړو ځای) اروېدلې ده؛ خو د هغه نوري ماناوي (نصیب، برخه او روزي) سند ښکاره کول غواړي. قاموس لیکونکی باید هیڅکله بې سنده کلیماتو ته له ځانه ماناوي و نه کاږي. البته، د ځینو ګرانو او پېچلو ټکو د ښې توضیح او تشریح له پاره د بېلابېلو مترادفاتو راوړل یوه خبره ده؛ خو د بېلو یا جلا ماناوو لیکل بله. باید کوښښ وسي، چي د بېلو یا جلا ماناوو د ښې پېژندني له پاره د هغو د استعمال ساحه او ځای هم په ګوته سي؛ مثلاً د «استقراء» اختصاصي مانا ته په مخففو یا اختصاري تورو ولیکل سي «منط»، چي په واقعیت کي د «منطق» لنډه یا مخففه نخښه ده. همدغه راز ئې د یوې فرضیې په راوړلو سره د استعمال مورد هم وښوول سي.

– مجازي ماناوي دي همېشه تر حقیقي ماناوو وروسته را وړلي سي؛ مثلاً صنم، چي په حقیقي مانا «بت» ته ویل کېږي او په مجازي مانا معشوق، یار، نګار او داسي نورو ته یا په مخکني مثال کي که چیري د «آخور/ اخور» ټولو ماناوو ته سند پیدا سي، بیانو د بودګانو د خوړو ځای د هغه حقیقي مانا ګڼله کېږي، چي د هغه تر مجازي ماناوو (نصیب، برخه، روزي) باید دمخه ولیکله سي.

– د «آبدستان» کلیمه و «افتابه» ته ارجاع سوې ده. ماناوي ئې کوزه، ګډوه، بدنۍ، لوټکه [لوټه] ښوول سوي دي. دا چي ایرانیانو «افتاوې» یا ګډوې ته «آبدستان» وضعه کړی دئ، د دوی خپله خوښه؛ خو د یوه معاصر قاموس لیکونکي په توګه باید دې خبري ته ډېر ملتفت اوسو، چي «کوزه»، «ګډوه»، «بدنۍ» او «لوټه» ګرده جلا جلا شیان دي؛ د شکل، رنګ او ظرفیت له پلوه مځکه او اسمان فرق لري. په بله ژبه «کوزه»، «بدنۍ» او «لوټه» هیڅکله د «ګډوې»

مترادف ټکي نه دي. د دې دليل له مخې بايد د «آبدستان» يا «افتاوې» په ماناووکې د دغه راز متقاربو ټکو له يادوني ډډه وسي؛ ځکه لوستونکو ته د «آبدستان» يا «افتاوې» په سمه او دقيقه پېژندنه کښې ناسم ذهنيت ورکيي. قاموس ليکونکى بايد هيڅکله د «سپېرکی» د توضيح له پاره «خواږه ولني» و نه ليکي؛ ځکه «سپېرکی» جلا شی دئ؛ او «خواږه ولني» جلا. په داسي مواردو کې که د نورو ژبو له مترادفو ټکو، په تېره بيا لاتيني ټکو څخه استفاده وسي، د پام وړ شي په پېژندنه کي ډېر کومک کيي؛ مثلاً که «سپېرکی» ته د پارسي ژبي «جوانی» يا د اوردو ژبي «اجوائن/ اجوان» وکښل سي، د دې خوا او آ خو پښتانه ئې په ډېري اسانۍ پېژني. په انګرېزي کي هم پر Carom) (seeds سربېره د "Ajowan/Ajwain" په نامه اسانه پېژندل کېږي. په قاموس پوهنه کي د هايپانمي(hyponymy) او مـيرنمـي (meronymy) اصول دقيقاً و همدغو موضوعاتو او مسألو ته اشاره کيي. د دې اصولو او قواعدو له مخي بايد نه هيڅکله بېلو يا جلا شيانو ته يو راز نومونه و ټاکو؛ او نه هم هيڅکله د يوه شي يا يوه سيستم مختلفي او مجزا برخي په يوه نامه يادي کو. قاموس ليکونکى بايد د کېميايي/ کېمياوي عناصرو او انساني اناټومۍ په شان، د طبيعت هر عُنصُر او د وجود هره برخه په خپلو خاصو او مشخصو نومو وليکي؛ او په دې ډول لوستونکي د شيانو، اجسامو او بېلابېلو موقعيتو په سمه او دقيقه پېژندنه کي له هر راز تېروتنو او ګډوډيو څخه وژغوري.

– که قاموسي سرټکي د رسمي، شفاهي، لرغوني، ادبي، عاميانه او داسي نورو ډولو له اړخه هم ونښوول سي، په پېژندنه کي بې له لوستونکو سره ډېره مرسته وسي؛ لکه «منګس»، «منګر»، «کانياب»، «اومبارک» او داسي نور، چي ګرده عاميانه تلفظونه دي يا «اوېجه»، «ورشو»، «اوجاړ»، «يرغال »، «اشلوک»، «لرمل»، «ترمل»، «برمل» او داسي نور، چي ټول لرغوني ټکي دي يا «ګوشنه »، «شيشته» او داسي نور، چي د پارسي ژبي شفاهي يا ګفتاري ټکي دي؛ خو په رسمي او ادبي متنو کي د «ګرسنه» او «نشسته » په بڼه کارېږي.

– په (۲۲۷) مخ کي «تابان» ته پراخي او روښانه مانا وي ليکلي سوي دي: ځلېدونکی، ځلاوو، برېښندوک، ببښندوکی، ځلاند. ما ځلاوو چيري نه دئ اورېدلی. که ئې په کومه لهجه کي د استعمال ملاتړ او سند راوړل سي ډېر به ښه يي، که نه نو حذف دي سي. په (۴۸۰) مخ کي «ساده» کليمه په ډېر ښه ډول مانا سوې ده. که د نورو ټکو په مانا کولو او تشريح کولو کښي هم دغه لار پر مخ واخيستل سي، د قاموس ارزښت او وزن به لا زيات کي.

– په (۲۲۷) مخ کي «تابع اوليه» ته کښل سوي دي: لومړنی تابع، انتګرال. دا حقوقي اصطلاح يو څه توضيح او تشريح غواړي. نه په لومړني تابع څوک پوهېږي او نه په انتګرال. تر هغه ځايه، چي زه پوهېږم، اينټيګرل (integral)، چي ايرانيان ئې د فرانسوي ژبي د انتيګرال (intégrale ) په بڼه وايي؛ او پر ژبه او ادب سربېره په رياضي کي هم پراخ استعمال لري، زياتره په دوو ماناوو کارېږي:

۱ – ضروري، ابتدايي (لومړنی)، نه بېلېدونکی (نه تقسيمېدونکی)، متشکله (د جوړښت برخه) او داسي نور.

۲– مُکَمَّل، ټول، بشپړ، ناوېشلی.

په «تابع اولیه» کې اوله مانا مراد ده.
زما په نظر باید د قاموسي سرټکو په ماناوو کې له اینټیګرل/انټیګرال غوندې ټکو څخه په کلکه پرهېز وسي؛ ځکه داسې پېچلي، نااشنا او ذومعانین کلیمات له لوستونکو څخه لار او ګودر ورکیې. پوره باور لرم، چې اینټیګرل کلیمه لوستونکو ته تر «تابع اولیه» هم ډېره ګرانه او پېچلې ده. په داسې مواردو کې ښه لار دا ده، چې موضوع په ساده او اسانه ټکو، تشریح او روښانه سي. سربېره پر دې، قاموس لیکونکی باید د قاموس لیکنې د لوی او ارزښتناک اصل په توګه د غیرضروري لغتو، ترکیبو او اصطلاحاتو له ثبتولو څخه تر وسه وسه ډډه وکې. باید هڅه او کوښښ وسي، په قاموسو کې هغه څه را ټول سي، چې خلګ هره ورځ په کور، کار، تعلیم او تحصیل کې ورسره مخامخ یې. غیرضروري او غیرمستعمل ادبي، سیاسي، دیني، فلسفي او تخنیکي لغتونه او اصطلاحات یا ډېر بې ارزښته تاریخي او جغرافیایي نومونه له یوې خوا د قاموسو فزیکي حجم زیاتیې، چې په ورلو راوړلو کې پېچومې پېښیې؛ او له بلې خوا ئې بیه زیاتیې، چې رانیول ئې د زیاترو خلګو تر مالي توان لوړېږي. دا دواړه اړخونه قاموس لیکونکي ته د خطر زنګونه دي. په ایران کې د علامه علي اکبر دهخدا «لغتنامه» له خپل ټول علمي او تحقیقي ارزښت سره سره د حسن عمید او ډاکټر محمد معین له فارسي فرهنګو سره سیالي نه سي کولای؛ ځکه په دې فرهنګو کې د ټولنې د منځنۍ سوېې خلګو ټول ضرورتونه په پام کې نیول سوي دي. زما په ګومان«تابع اولیه» ترکیب هم د دغه راز غیرضروري او غیر مستعمل اصطلاحاتو له ډلې څخه دئ. د دوو ژبیزو قاموسو لیکونکی باید په خپل قاموس کې د اصلي ژبې (source language) پر ځای د دوهمې ژبې (target language) د ویوونکو اړتیاوو ته پوره پام وکې؛ ځکه قاموس تر ډېره حده د دوهمې ژبې د ویونکو د اړتیاوو پر بنسټ لیکل کېږي. دا حتمي او ضروري نه ده، هغه څه ته چې ایرانی لوستونکی اړتیا لري، باید هرومرو افغان لوستونکی هم اړتیا ولري. د هرې ټولنې د خلګو اړتیاوې د ژبې، ادب، مادي او مانوي کلتور، دین، مذهب، تاریخ، جغرافیایي موقعیت، اقلیم، سیاسي او اقتصادي نظام او داسې نورو ځانګړتیاوو له مخې یو له بله جلاوالی او توپیر لري. په دې دلیل نو که د قاموسي سرټکو په راټولولو کې له انتخابي او التقاطي لارې څخه کار واخیستل سي، لوستونکو ته بې (به یې) ګټه ډېره یې.

– په (۲۳۰) مخ کې «تاراجګر» کلیمه دوه واره ثبت سوې ده. په لومړي ثبت کې د «ناتارګر»، «ناورینګر» او «ګرګر» ماناوې د تأمل وړ دي. تاراجګر (تاراج + ګر) کلیمه، څرنګه چې له نامه یې ښکاري د تاراج، غارت، یغما، چور، چپاو (چپاول)، لوټماری، تاړاک، یرغل او تالان په مانا ده. «ناتار» د ظلم، قتل و قتال، زیاتي، بلوا، وحشت و دهشت او داسې نورو په مانا له «تاراج » سره ډېر اړخ لګیې؛ په داسې حال کې، چې په کندهار کې د یو ډول خوړو مانا هم لري؛ خو ناورین زیاتره د ویر، غم، ماتم، فاجعې، مصیبت او داسې نورو په مانا کارېږي، چې له «تاراج» سره په مانا کې نیژدې والی نه لري. « ګرګر» کلیمه هم زیاتره د ظالم، ستمګر، ستمکار، مستبد او داسې نورو په مانا راغلې ده. نتیجه دا چې په پښتو کې د پاړسي «تاراجګر» له پاره د «ناتارګر»، «ناورینګر» او «ګرګر» پر ځای د «لوټمار»،

«يرغلگر» او «تاړاكگر» اشنا او مستعملي كليمې غوره برېښي. د «سالار» له پاره هم د «سركښ» مانا سمه نه ده؛ ځكه سركښ ياغي، باغي، عاصي، سرغړاند، سرغړوونكى، نافرمان ته وايي. ښايي مقصد «مخكښ» يي؛ خو د چاپي تېروتني له اسيته «سركښ » راغلى يي. سالار، مشر، سردار، د قوم مشر، د خلگو مشر ته وايي؛ لكه سپاه سالار، چي د لښكر مشر دئ. د «سازنده» له پاره هم «رغاونيزه » كليمه د شكل او مانا له نظره سمه نه برېښي. په پارسي كي د «سازنده» په نامه دوې همږغه مشابه كليمې (homophone) لرو:

۱- سازنده: جوړونكى، رغوونكى، رغندوى، صانع، صنعتگر، جاعل او داسي نور.

۲- سازنده: ساز ږغونكى، ډم، غزلچي، شوقي، هونرمند او داسي نور. «سمون» او «سازښت» هم د «سازگار» له پاره سمي او دقيقي كليمې نه دي. د «سازگار» دقيقه مانا وړ، برابر، جوړ، موافق، مطابق او داسي نور دي. «ناسازگار» ياني نابرابر، ناوړه، ناموافق، مخالف او داسي نور.

– په (۲۳۱) مخ كي دي «زغلېدونكى» د «ځغلېدونكى» په بڼه وكښل سي. كه دا ډول تلفظ او املا ومنو، بيا نو ځنگل، ځان، ځورول او داسي نور ټكي هم بايد د « زنگل»، «زان»، «زورول» او داسي نورو په بڼه وكاږو. سربېره پر دې، په ټول قاموس كي دي هيڅكله د پښتو اصيل توري لكه «ځ»، «څ»، «ژ»، «ږ»، «ښ» په «س»، «ز»، «گ» او «خ» نه اړول كېږي؛ مثلاً د ژبي معياري املا بايد هرومرو «ژبه» وكښل سي. كه د لهجه يي ورياتهو د ښوولو له پاره په پاى كي «زبه» او «جبه» هم وليكل سي، بده خبره نه ده. په منل سوو املاوو كي د معياري ليكدود لومړيتوب او په غيرمعياري املاوو كي د بېلابېلو لهجه يي املاوو ثبتول، ډېر ضروري كار دئ. د پښتون، پښتونخوا، كښېښستل، كښېښوول/ كښېښودل، ښكنځل، ژلى/ ږلى او ږغ اصلي او سهي املاوي دا دي؛ ځكه په دې املايي بڼو كي د پښتو اصيل او لرغوني ږغونه خوندي دي. پختون، پختونخواه، كيناستل، كېښوول/ كېښودل، كنځل، زلى/ جلى، غږ او داسي نور سهي نه دي.

– په (۴۸۱) مخ كي «سازمان عفو بين المللى» ته «د نړيوالي ښښني سازمان» ليكل سوى دئ. په دې عبارت كي دوې خبري د تأمل وړ دي:

۱- بين المللي كليمه له لغوي پلوه د نړى وال معادل نه ده. بين المللي كليمه پر هر هغه څه دلالت كيي، چي د څو ملتو يا څو هېوادو په منځ كيي؛ مثلاً" Arab League " يو بين المللي سازمان دئ؛ ځكه بېلابېل ملتونه يا هيوادونه غړيتوب پكښي لري؛ مگر سره له دې هم يو نړى وال سازمان نه دئ. په دې خاطر نړى وال سازمان نه دئ، چي نه د نړى ټول يا زياتره هيوادونه غړيتوب پكښي لري؛ او نه تر عربي هيوادو آخوا په نورو خبرو او مسألو غرض لري. كه په يوه سازمان كي گرسره دوه يا درې ملتونه را غونډ سوي يي، بيا هم له لغوي پلوه هغه ته د «بين المللي» صفت وركول بې ځايه خبره نه ده؛ ځكه «بين المللي» ياني د ملتو/ هيوادو تر منځ، چي په انگرېزي كې اينټرنشنل (international) بولي؛ حال دا چي د نړى وال له پاره زياتره يونيورسل (universal)، (global) او (worldwide) كليمې استعمالېږي. كه د ملگرو ملتو سازمان ته نړى وال سازمان وويل

سي، دا په هر مانا دقیقه خبره ده؛ په دې چې د نړۍ ټول هیوادونه، ملتونه او سازمانونه ئې غړیتوب لري؛ او د نړۍ والي سولي، امنیت او همکارۍ د تأمین له پاره جوړ سوی دئ. شک نسته، چې د ملګرو ملتو سازمان په عین حال کي یو بین المللي سازمان هم ګڼلای سو؛ ځکه د بېلابېلو ملتو تر منځ روابط تنظمیي. که چیري مورِ د انګرېزي ژبي و «اینټرنشنل» او «یونیورسل» دواړو ته یوازي د «نړۍ وال» ټکی غوره کو، په دې کار سره مو په حقیقت کي د پښتو له لغوي زېرمي سره لو جفا کړې ده. په پارسي کي هم د دې دوو بېلو مفاهیمو له پاره د «بین المللی» او «جهانی» اصطلاحوي کارېږي؛ په اردو او په عربي کي هم د دې مفاهیمو له پاره د «دولي»، « بین الاقوامي» او «عالمي» ټکي کارېږي. لکه څنګه چې د «آبدستان» او «افتاوې» په اړه یادونه وسوه، بېل شیان او بېل مفاهیم باید هیڅکله د سوچه تابه په سَوَب ګډوډ نه سي. که د ژبي د سوچه تابه پر خره سپاره کسان په شعوري یا غیرشعوري ډول د ژبي لغوي زېرمه محدودیي، دا د هغوی روحي ناجوړيَ ده؛ مګر قاموس لیکونکی باید دې باریکیو او ظرافتو ته ژور پام وکي؛ او پرې نه ږدي، چې د سوچه پالني له شامته د ژبي و لغوي زېرمي ته زیان واوړي.

۲- بخښنه باید د «ښښنه » په بڼه و نه کښل سي. د دې ټکي اصلي او سهي املا «بخښنه » ده، نه «ښښنه» . که تر «بخښنه» وروسته «ښښنه» هم ولیکل سي، بده خبره نه ده؛ ځکه «ښښنه» د پښتو د مرکزي او ختیځي لهجې وینګ ښيي.

- په (۷۳۵) مخ کي «ماترک» اصطلاح راغلې ده؛ او دغه ماناوي ورته کښل سوي دي: حال، شته، رتبه، دولت، ملکیت. تاسي ته مالومه ده، چې «ما+ ترک» یوه عربي ترکیبي کلیمه ده. ما (هغه څه) او تَرَکَ (پرېښی، تر ک کړی، پاته). دواړي کلیمې په ګډه (ماترک) یاني هغه څه چي پاته دي یا هغه څه چې په میراث پرېښي دي. په عربي کي کله کله د دې مفهوم له پاره د «متروک» ټکی هم استعمالېږي (وګورئ: Wehr ۹۴۰). دا د اسلامي حقوقو، په تېره بیا میراث د حقوقو اصطلاح ده. په پارسي کې د «ماترکَ» پر ځای د «ماترک» په بڼه وایي(وګورئ : عمید ۳: ۲۱۳۳). پښتانه، په تېره بیا کنداریان ئې «ترکه» بولي، چي په واقعیت کي د عربي «ترکة» مفغَنه بڼه ده؛ او د همدې میراث یا ماترک په مانا ده. د ښاغلي یوسفزي په ثبت سوو ماناوو کي ما ته «حال» او «رتبه» ګرسره نااشنا ښکاري؛ په داسي حال کي چي «شته»، «دولت» او«ملکیت» درې واړه له «ترکې» یا «ماترک» سره اړخ لګیي. سره له دې هم هر ډول شته، دولت او ملکیت «ترکه» یا «ماترک» نه سو بللای. «ترکه» یا «ماترک» یوازي د مړي مال و منال ته ویل کېږي، چي وارثانو ته په میراث پاته سوی یي.

– په (۵۱۴) مخ کي د «سودا» یوه مانا ثبت سوې ده؛ خو په پښتو کې بله مانا نه ده راوړل سوې. د «سودا» عامه مانا هره ورځ پورته او کښته کېږي؛ ټول ئې پېژنو؛ خو دوهمه مانا ئې په خاصو حالاتو کي استعمالېږي. له دې کبله ښایي ځینو کسانو ته یو څه نا اشنا و برېښي. د «سودا» دوهمه مانا اندېښنه، اضطراب، پرېشاني، وسواس، مالیخولیا او روحي ناارامي ده، چي په پښتو محاورو او ادب کيَ پر خپل ځای ډېره استعمالېږي؛ مثلاً خلګ وایي: «پلانی سوادیي سوی دئ». یا «پلاني ته سودا ور لوېدلې ده». «سامان» کلیمه هم له دې ډلي

ځخه ده، چې په پارسي کې پر لوازمو، اسبابو او وسایلو سربېره د نظم او ترتیب، اندازې او نښانې په مانا هم کارېږي. داسې ډېرې کلیمې سته، چې باید د یوې مانا په لیکلو ئې اکتفا و نه سي.

- کازمیټک (cosmetic) یا کسمیتک (cosmetique) یوازې د شونډو سرو کولو موادو ته نه وایي. کازمیټیکس د اسم (noun) په بڼه هر هغه پوډر، کریم، لوشن او نورو کیمیاوي موادو ته ویل کېږي، چې د وجود، په تېره بیا مخ او وېښتانو د ښکلا له پاره استعمالېږي. کازمیټیک د صفت (adjective) په حیث عمدتاً درې بېلې ماناوې لري:

۱- زینتي، تزییني، ښکلوونکی.

۲- بېکاره، ناکاره (هغه څه چې هیڅ کار نه سي کولای یا په هیڅ درد نه خوري).

۳- سطحي، سرسري، جزیي، غیرضروري.

د دغو ماناوو له یادوني ځخه مې مقصد دا دئ، چې کازمیټک بېلابېلې ماناوې لري؛ او هره مانا ئې ځانته ځای او محل لري. که په قاموس کې د یوه سرټکي ټولې ماناوې نه یې وړاندې سوې یا هره مانا په سم ډول نه یې بیان سوې، بیا نو لوستونکی هغه ته د یوه معتبر او باوري ماخذ په سترګه نه ګوري. د همدې دلیل له مخې باید تر وسه وسه کوښښ وسي، چې د هر ذومعانیین (polysemous) سرټکي ټولې مختلفې ماناوې ثبت سي؛ او لوستونکی د خپل پام وړ مانا د موندولو له پاره د بل فرهنګ وکتلو ته محتاج نه سي.

د نوي مېتودولوژۍ په رڼا کې د قاموس لیکنې اصول او قواعد د دې لنډو خبرو او مشورو په ویلو سره نه ختمېږي (ځوان او هڅاند قاموس لیکونکي کولای سي په دې برخه کې د زیاتو جزییاتو او مالوماتو له پاره د دې عاجز «د نوي قاموس لیکنې مېتودولوژۍ ته یوه کتنه» اثر وګوري). سره له دې هم هر نوي فکر او نوښت ته عملي جامه وراغوستل هم ځان ته شرایط او امکانات غواړي. له افغان قاموس لیکونکي ځخه باید په یوه وار هیڅکله د داسې قاموس لیکلو یا تألیف تمه و نه سي، چې اوروپایي قاموس لیکونکو د نوو تیوریکو ارزښتو، علمي او تحقیقي امکاناتو او بالاخره څو سوه کلنو عملي تجربو پر بنسټ تألیف کړي دي. فرهنګ لیکنه پرمختیایي او بشپړتیایي بهیر دئ. له انساني پرمختګو، په تېره بیا ژبنیو، علمي، فکري او فرهنګي پرمختګو سره ګام په ګام پر مخ درومي. د همدې استدلال له مخې باید تل له شرایطو او امکاناتو سره سم د هغو وبشپړتیا او پیاوړتیا ته پام وسي.

ښاغلی یوسفزی باید نوي قاموس لیکنې ته د خپلې همېشنۍ ادبي - فرهنګي کار او مشغولتیا په سترګه وګوري؛ او په دې برخه کې د خپلې پوهې، تجربې، پرله پسې او نه ستړې کېدونکې زیار په مرسته د اوسني پارسي - پښتو قاموس د بشپړولو او غني کولو تر څنګ د یوه بېل پښتو - پارسي فرهنګ و لیکلو ته هم اوږه ورکي. ښاغلي یوسفزي ته د قاموس لیکنې په ارزښتناک علمي - تحقیقي کار کې د لا زیاتو پرمختګو او بریاوو هیله کوم.

محمدهارون خپل شعشعي
لندن
د ۲۰۱۲ع کال د فبرورۍ لسمه

ماخذونه

- افغاني نویس، عبدالله. افغان قاموس. کابل: پښتو ټولنه، ۱۳۳۵- ۱۳۳۶.

- امرخېل، څېړنوال عزيزالله، او نور. د پښتو - پښتو تشريحي قاموس. ۴ټ. د ميديوتيک مرکز اوډنه او چاپ. کابل: د افغانستان د علومو اکاډيمي. د ژبو او ادبياتو مرکز، ۱۳۸۳.
- بدخشي، شاه عبدالله. د افغانستان د ځينو ژبو او لهجو قاموس. ۲ ټ. کابل : پښتو ټولنه، ۱۳۳۹.
- بړيڅ، محبت خان، نواب. رياض المحبت. B.M. Or۴۴۹۰ - Foll.۷۲۴ . برېټيش کتابتون .لندن. (خطي نسخه). په برېټيش کتابتون کي د «رياض المحبت» د نورو خطي نسخو نومرې دا دي:
I.O.MSS.P.۲۸٦۸-Foll.۴٦۲
I.O.MSS.P.۲۸٦۹-Foll.۴۴۷
په هند کي د «رياض المحبت» د خطي نسخو د موندني جزييات دا دي:
کلکته، د بنگال دايشياټيک سوسايټي کتابخانه، اوردو سوسايټي کلکشن، نومره: (۱۴۷).
کلکته، نشنل لايبرري، نومره: **Pr. III-B-۲۰**
رضا لايبرري، رامپور (پارسي کلکشن)، نومره: (۲۵۵۳). (د زيات تفصيل له پاره وگورئ: هيوادمل ۱۷۸، ۱۷۹، ۱۸۰، ۱۸۳). برېټيش کتابتون. لندن. (خطي نسخه) **B.M.Or۴۴۹۱-Foll.۲۲۳**.
- بړيڅ، نواب الله يار خان . عجايب اللغات. په برېټيش کتابتون کي د «عجايت اللغات» د نورو خطي نسخو نومرې دادي: **B.M.Or.۳۹۹-Foll.۲۷۴**
**I.O.MSS.P.۴۵۱۱-Foll.۱٦٦** په هند کي د «عجايب اللغات» د خطي نسخې د موندني جزييات داسي دي: رضا لايبرري، رامپور (پارسي کلکشن)، نومره: (۲۵۵۴).
- حبيبي، عبدالحی. لوی احمدشاه بابا. کابل: پښتو ټولنه، ۱۳۱۹.
- عميد، حسن. فرهنگ عميد. ۳ج.، چاپ دوم، تهران: امير کبير، ۱۳٦۵.
- کاکړ، لعل محمد او عبدالحی حبيبي. سپېڅلې پښتو. کندهار: طلوع افغان، ۱۳۱۸.
- مومند، محمد گل خان، وزير. پښتو سيند. ۲ټ، کابل: عمومي چاپخانه، ۱۳۱٦.
- هيوادمل، زلمی. د هند د کتابخانو پښتو خطي نسخې يا د هند د کتابخانو د پښتو خطي نسخو فهرست . کابل: پښتو ټولنه، د ژبو او ادبياتو مرکز، د افغانستان د علومو اکاډيمي، ۱۳٦۳.

Aryanpur, Abbas & M. Aryanpur. The English-Persian Collegiate Dictionary. ۲ Vols. Tehran: Amir Kabir Publication Organization, ۱۹۹۲.

Thomson, Della. The Oxford Dictionary of Current English. ۹ th ed. Oxford: Clarendon Press, ۱۹۹۵.

Wehr, Hans. A Dictionary of Modern Written Arabic. Ed. by J. Milton Cowman, ۳rd. ed. Beirut: Librairi du Liban, ۱۹۸۰.

ويبپاڼې:
په اميريکن هيريټيج او کالينز ډيکشينريو کي د «استقراء» او «قياس » آن لاين تعريفونه دلته کتلائ سئ:

http://www.thefreedictionary.com/deduction

http://www.thefreedictionary.com/induction
سلجوقی، فقید صلاح الدین. «فلسفهٔ سید جمال الدین افغانی» سید جمال الدین افغان. بخش چهاردهم . تلخیص، تصحیح و دوباره نویسی از ولی احمد نوری . افغان - جرمن آن لاین ۲۰۱۲/۰۱/۲۶. :
http://www.afghan-german.net/upload/Tahlilha_PDF/walinouri_said_jamaluddin_afghan_۱۴.pdf

پای

د ح. رزمي ټولونه:

# ګل خبري

- هغه کسان چي د نورو سره په جګړه بوخت دي د خپل ځان سره هم په سوله کي نه دي.
- که ته د باد لوري بدلولای نه سې نو خپله بېړۍ دي ورسره عیاره کړه.
- که ته د قهر په وخت کي یوه شېبه حوصله وکړای سې نو به د سلو ورځو د پښېماني څخه ځان وژغورې.
- د ماشومتوب خوشحالي د ژوند تر پایه دوام کوي.
- خپلو فکرونو ته پام کوه ځکه هغوی ستا په خبرو بدلېږي، خپلو خبرو ته پام کوه ځکه هغوی ستا په عمل بدلېږي، خپل عمل ته پام کوه ځکه هغه ستا په عادت بدلېږي، خپل عادت ته پام کوه ځکه هغه ستا په کرکټر بدلېږي، خپل کرکټر ته پام کوه ځکه هغه ستا په سرنوشت بدلېږي.
- د خلکو سره ستا اړیکي د بانکي حساب په شان دي، خلک په بانک کي یا پیسې اچوي یا ئې را باسي، نو پام کوه چي پخپلو خبرو او کړو سره خپل بانکي حساب تش نه کړې.
- د ټولو انسانانو تر منځ یو مشترک خاصیت سته، هغه دا دئ چي ټول یو د بل سره توپیر لري.
- تر څو چي دي خپل هنر خلکو ته نه وي ښوولی، مه پرېږده چي مړ سې.
- هیڅ شی د یوې مخکني دقیقې په اندازه لیري نه دئ.
- ته په هغه ذهنیت مشکل نه سې حلولای چي دغه مشکل ئې زېږولی دئ.
- د یو تن مړینه تراژیدي ده، د ملینونو تنو مړینه احصائیه ده.
- عقل د هغو فکرونو څخه ځان ګوښه کوي چي د کمزورۍ سبب کېږي.
- عمل تر الفاظو په لوړ اواز رغېږي.
- د ښځې مړه کاته ډېره پیاوړې تلکه ده.
- موږ ځکه د یو چا څخه کرکه کوو چي سم ئې نه پېژنو او هیڅکله به ئې سم و نه پېژنو ځکه چي کرکه ځني کوو.

***



لیکوال: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

# آیا شاه بابا صرف د هند شتمنیو ته ورتی؟

بسم الله الرحمن الرحیم – دا یو ثابت حقیقت دئ چې ملامت او خبیث تل د جګړې د سوبمن له خوا را پېژندل کېږي. په بل عبارت، نن موږ ګورو چې د هرې جګړې یا مناقشې بایلونکی (بد) او ګټونکی ئې (ښه) وي بې له دې چې د هغوی حقانیت یا جنایت ثابت سي. له بده مرغه تاریخ هم په دې هکله پټه خوله نیولې وي.

په هر صورت ، باید ځیر اوسو چې د افغانستان او هندوستان تاریخونه دومره سره تړلي، جاروتلي، لاینفک او ګډ دي چې د یوه په نه لوستنه سره به هغه بل هم نیمګړی سی. فلهذا، که څوک له دغو څخه د یوه تاریخ لولي نو هغه بل هیڅ نه سي پرېښوولای، که نه لوستل به ئې کورټ ناقص وي.

هو! تر هغه ځایه چې معاصر تاریخ ثابته کړې، درې استعماري جګړې او د هغوی فیصلې د لویو سرځوړیو په توګه ثبت او ثابتې سوې دي، یعنی:

لومړی – مرهټه افراطیانو ته «د پاني پت جګړه».

دوهم – ناپلیون ته «د واټرلو جګړه».

درییم – برتانیې ته «د میوند جګړه».

دا درې هغه تاریخي پېغورونه دي چې تل به د دې نومونو په اورېدو سره د هغوی نسلونه روحاً ځورېږي.

ډېره مهمه او حساسه باریکي دا ده چې ځیني حاسدان او بد خواهان یا په بل عبارت د افغاني او پښتني تاریخ مسخه کوونکي ځېرې ادعا کوي او تور لګوي چې احمد شاه بابا ګواکي صرف د هند مادي نعمتونو یا خزانې او یا هم د هغه ځای د استعمار هوس

ورجذباوه او په دې ډول ګواکي د لسګونو زرو افغانانو د هلاکت سبب سو او د هند اداري چارې ئې ناحقه ګویا بیرته هندیانو ته وسپارلې.

دغسي له غرضه ډک تهمتونه ځکه بې اساسه او کاذب دي چي په خپله تاریخي اسنادو هغه درواغ ثابت کړي دي چي اوس به ئې وڅیړو:

پر هند باندي بالعموم او پر مرهټانو بالخصوص د شاه بابا یرغل تعرضي نه بلکي تدافعي وو، یعني یو مجبوریت وو چي باید اجرا سوی وای. د بیلګې په توګه به یو تاریخي سند تقدیم کړم. نوموړ هندی تاریخپوه (کوشیک روی) لیکي چي: کله مرهټه پوځ د ۱۷۵۸ په مارچ کي «سرهند» او په اپریل کي لاهور ونیول، تېمور شاه او جهانخان ئې هلته مات او تر پېښوره وشړل، نو مرهټه قوماندان (رګوبا) د ۱۷۵۸ د مې پر څلورمه په پونه کي خپل پېشوا (یعني واکمن) ته یو لیک ولېږی چي داسي ئې پکښی لیکلي وو: «موږ د مخکي څخه لا تر ډیره حده لاهور، ملتان، کشمیر او نور وطنونه چي د اټک پر دغه څنډه واقع دي، نیولي دي او هغه سیمي به هم ډېر ژر ونیسو چي دمګړی زموږ تر واک لاندی نه دي راغلي. د احمد خان ابدالي زوی تېمور سلطان او جهانخان زموږ د پوځیانو تر تعقیب لاندي دي او د هغوی پوځونه په بشپړه توګه لوټ سول. هغوی دواړه اوس د یو څو ماتو ګوډو پوځیانو سره پېښور ته رسېدلي دي... موږ دا تصمیم لرو چي خپل واک تر کندهار پوری وغځوو». (د هند تاریخي جګړې، کوشیک روی، ۸۰ – ۸۱ مخونه).

ښه! آیا دا سند په ډاګه نه ثابتوي چي شاه بابا د هند شتمنیو نه بلکي د خپل هېواد بقأ تحریک او لمساوه؟

په هر حال، که لږ څه شا ته ولاړ سو نو و به ګورو چي د ۱۷۴۷ په جولای کي معاصر افغانستان تأسیس او احمد خان د هغه پاچا سو. دغه جدیدالتشکیل دولت درو اساسي پایو ته اړتیا درلوده چي هغه ملي اډانه، پوځي اډانه او مالی اډانه ول.

لومړی – ملي پښتوانه د شیر سرخ د نهه ورځنۍ لویي جرګې د پریکړو او قومي مشرانو او ملت په عملي ننګه سره تأمین او تضمین سوه (د افغانستان نومیالي: ۱۳۰ مخ).

دوهم – «پوځی تکیه د پښتنو هغه عسکري ټولګي ول چي د خراسان څخه د احمد خان ابدالي سره وطن ته راستانه سوي ول. دغه پوځ که څه هم په شمېر ډېر زیات نه وو، خو ډېر تجربه کار او عالي جنګي قوت وو چي د نادر افشار سره ئې په ډیرو لښکر کښیو کي برخه اخیستې وه» (د درانیانو امپراتوري: ۲۹ مخ). غبار او ګنډاسنګهه د دې پوځ تعداد څه کم شپاړس زره بولي چي څلور زره کسه ئې د ده تر قوماندې لاندی ول (افغانستان در مسیر تاریخ: ۳۵۴ مخ؛ احمد شاه بابا افغان: ۴۶ مخ؛ درانی احمد شاه: ۳۹ مخ).

درېیم – مالي اډانه چي بشپړ کفایت ئې کړی وای، عجالتاً نه تر سترګو کېده، د نادر افشار تر قتل وروسته ایراني ښورښي جنرالانو او قوماندانانو د نادر کمپ او هر څه لوټ او چور کړي ول. څنګه چي احمد خان د نادر نژدې قوماندان وو او د هغه ناموس ئې وژغوری، نو هغوی د «کوه نور» مشهور الماس او نور قیمتي اجناس او جواهرات هم ورکړل. خو ځیني تاریخ پوهان لیکي چي احمد خان هم د هغه د کمپ په چورولو کي برخه واخیسته (د درانیانو امپراتوری: ۲۹

مخ، د مجمل التواريخ په حواله). خو څنګه چي احمدخان د نادر ناموس وساتی، نو د خزانې چورول ئې د تأمل او شک وړ ادعا ښکاري.

مالی پشتوانه هغه مهال تضمین سوه چي «د ختيځ افغانستان، ملتان او پنجاب څو کلن ماليات د تقي خان اخته بيګي په قومانده خراسان ته روان ول خو دا لوی کاروان په کندهار کي د احمدشاه دراني حضور ته راوستل سو چي په هغه کي د يو مليون او درې لکه شپېته زره (۱۳۶۰۰۰۰) روپيو معادل نغد، سره زر او نور اجناس شامل ول. دا د احمد شاه د مقاصدو سره يو ډېر لوی کومک وو» (افغانستان در مسير تاريخ: ۳۶۰ مخ). ځيني مأخذونه دا خزانه ۲۶ مليونه روپۍ، ځيني ئې درې مليونه، ځيني ئې بيا ۱۳ مليونه او ځيني ئې درې سوه اوښان په نغدو، جواهراتو، اجناسو او نورو بار بولي. خو که هر څه هم وي، په دې کي هيڅ شک نسته چي دغو پيسو د شاه بابا موقف او دريځ تر پخوا ډېر ټينګ کړ. دا چي ولي ئې دغه مال قبضه کړ، علت ئې دا دئ چي افغانانو هغه د ملت مال باله او نه ئې غوښته چي دا ستره خزانه په ايران کي د نادر قاتلانو او ياغي جنګسالارانو ته ورسېږي او چور سي (احمدشاه وارث مجدد امپراتوری افغانستان: ۵۰ مخ). همدا علت دئ چي په خپله تقي خان هم د خپلو ټولو پوځيانو سره د ټل له پاره د شاه بابا سره يو ځای سو.

هو! په دې ډول د جديد التأسيس دولت له پاره درې بنيادي پايې په صرف درو مياشتو کي تأمين او تضمين سوې چي هغه ملي، پوځي او مالي استحکام وو.

کله چي افغان دولت له هره اړخه پر پښو ودرېد، نو مابعده ګام اخيستني ئې د ټول هېواد (لر او بر افغانستان) يو موټی کول او د ملي حاکميت ټينګول وو. په دې ارتباط ئې ډېر ژر غزني، کابل او پېښور د مرکز يعني کندهار سره وتړل. وروسته بهرنيو تهديدونو ته اړم سو چي هماغه مغولي قبضه او فتنه وه.

د پورتنيو ولايتونو د ماليو، بسپنو، ډاليو او پوځيانو په ورکړه سره افغان دولت ډېر پياوړی او غښتلی سو. د پښتونخوا د ملی مشرانو تر ډاډ او هڅوني وروسته ئې پوځي او مالي ظرفيت په بېړه پراخېدی.

مهمه باريکي دا ده چي شاه بابا يوازي هندوستان ته نه بلکي ايران او منځنۍ آسيا ته هم متوجه وو تر څو خپل امارت ئې د هغه مهال د مسلطو شرايطو سره سم مظبوط او امن کړی وای. که اغيار ادعا کوي چي شاه بابا د هند خزانې ورکشاوه ، نو پوښتنه دا ده چي هغه کومي خزانې وې چي دئ ئې ايران او منځنۍ آسيا ته د ورتګ له پاره هڅاوه؟

په هر صورت، هندوستان ته د شاه بابا پوځي سوقياتو صرف مادي اړخ نه بلکي نوري انګېزني هم لرلې چي هغه ديني، انتقامي، جزايي، شفاعتي، امنيتي، ژغورونکي او بالاخره مادي وې. که مسألې ته ښه ورننوزو، نو و به ګورو چي مخ پر هند لومړنی يلغار د شتمنيو له پاره نه بلکي مذهبي او دعوتي جنبه لرله. دا چي ځيني کسان په اغماض يا بې خبرۍ سره پوښتنه کوي چي شاه بابا څنګه، ولي او په کوم طاقت او اقتصاد سره دومره ژر پر هند حمله وکړه، بايد لانديني څو حقايق ولولي:

لومړی – کله چي شاه بابا تر پاچا کېدو درې مياشتي وروسته کابل بې له کوم جنګ او مقاومت څخه ونيوی، نو د لاهور والي (حيات الله خان ملقب په شهنواز خان ) چي ډيلي ته ياغي سوی وو، د پوځي مرستي په غرض د

شاه بابا څخه وغوښته چي لاهور ته پوځي يون وکړي. شاه بابا هم ډېر ژر سردار جانخان پېښور ته ولېږی او دا پراخه سیمه د ټولو پښتنو په مرسته (چي له وړاندي ئې لا د ده سره د بلني په اړه مکاتبې لرلې) ، بې له جنګ او مقاومته د افغان حکومت سره ملحق سوه (درانی احمد شاه: ۵۷ مخ؛ افغانستان در مسیر تاریخ: ۳۶۱ مخ).

دوهم – شاه بابا چي کله د ۱۷۴۷ په ډسمبر کي د اتلس زرو پوځیانو سره له پېښوره د حرکت ترتیبات ونیول، نو اطلاع ورته راغله چي شهنواز خان بیرته د ډیلي د صدراعظم (قمرالدین خان) په هڅوَنه او غولوَنه سره پښېمانه سوی دئ. خو څنګه چي حرکت ئې پیل کړی وو، نو خپل دغه یون ئې تم نه کړ (افغانستان در پنج قرن اخیر: ۱۲۵ مخ ؛ درانی احمد شاه: ۶۰ مخ).

درېیم – دا مهال یوې غمجني پېښي د شاه بابا احساسات راوپارول او د پنجاب نیولو ته ئې نور هم اړم او مصمم کړ. هغه دا چي شاه بابا لږ څه مخکي صابر شاه ملنګ او محمد یار خان ضراب باشي لاهور ته لېږلي ول تر څو خلکو ته د ده په ګټه تبلیغ وکړي. دا مهال د لاهور حاکم شهنواز خان هغوی دواړه بندي کړل او وروسته ئې صابر شاه وروغوښت او داسي پوښتنه ئې څني وکړه: «احمدشاه ورور مي څنګه دئ؟» صابر شاه په جواب کی ورته وویل چي: «احمد شاه د ولایت (افغانستان) او خراسان خپلواک پاچا دئ. د هندوستان د نیولو اراده لري او ته د بل چا نوکر او د یوې سیمي حاکم یې. ته د داسي وینا جرأت څنګه کوې؟» دې جواب شهنواز خان ډیر ودرداوه او صابر شاه ئې خپل بخشي خواجه عصمت الله یا میرزا میر غضب ته وسپاره او هغه هم د شهنواز له امره سره سم په خوله کي ویلي سرب ورتوی کړل او په دې توګه ئې وواژه». (درانی احمدشاه: ۶۲ مخ؛ شهنامه، تعلیقات – ۵۳۸ مخ).

شاه بابا چي صابر شاه ته ډېره عقیده لرله، په دې پېښه سخت غمجن او په عین حال کی مصمم سو چي په هره توګه وي لاهور به نیسي. نو هغه وو چي په سرعت سره یې ځان لاهور ته ورساوه، هغه ئې ونیو او د لاهوریانو په بدرګه د ۱۷۴۸ د جنوري پر دوولسمه ښار ته ننووت.

دا مهال د ښار د مسلمانانو او هندوانو څو مشران د احمدشاه ابدالي حضور ته راغلل او هیله ئې وکړه چي د دېرشو لکو روپیو په بدل کي دې پر ښار د لوټ تالان او وژني حملې نه کېږي. ابدالي هم دا عرض ومانه او ټولو قوماندانانو ته ئې امر وکړ چي د ښار بشپړه ساتنه وکړي. همداسي هم وسوه او هغه د شتمنیو څخه علاوه نوي توپونه او عصري وسلې هم تر لاسه کړې چي تر دې مهاله ئې نه لرل. ځکه نو هند ته د احمد شاه لومړنی سفر یوازی د شتمنیو په غرض نه بلکي د بلني او غوړ تاووني په خاطر وو (افغانستان در پنج قرن اخیر: ۱۲۶ مخ).

په همدې ترتیب، د شاه بابا دوهم یلغار (۱۷۴۸ – ۴۹) د درو عمده انګېزنو له مخی وسو:

لومړی – میرمنو د ۱۷۴۷ په اپریل کي د ډیلي له خوا د لاسه وتلي پنجاب والي سو چي د افغانستان په ختیځ سرحد کي ئې ورځ په ورځ مادي او پوځي قدرت زیاتېدی. ده کولای سو چي د احمدشاه ابدالي د غیابت پر مهال د پېښور سرحدي سیمي په آسانۍ سره ګواښولي وای (درانی احمد شاه: ۹۸ مخ).

دوهم – د کابل ښرل سوی والي ناصر خان یو ځل بیا د ډیلي له خوا (د ۱۷۴۸ د اپریل

پر ۱۲امه) د کابل والي اعلان سو. دی هم لاهور ته راغی او دلته میرمنو د کابل د بیرته نیولو ژمنه ورسره وکړه. نو د احمد شاه ابدالي په لږ غیابت یا مصروفیت سره به هغه پر کابل حمله کوله (هاغه: ۹۹مخ).

دریم - دا یلغار ئې د ماہپیور د جنګ بدل وو. په هغه پېښه کي احمدشاه ابدالي ځکه جګړه پر نیمایي پرېږ ایښې وه چي: الف - د «بان» په نوم د اورنیو مرمیو ډک ګاډی د اور اخیستلو له امله چاودېدلی او نورو ټولو ګاډیو اور اخیستی وو چي ګڼ شمېر فاتح افغاني پوځیان ئې ژوبل او وژلي ول، ب - احمدشاه بابا ته اطلاع راغلې وه چي د ده وراره او د کندهار والي (لقمان خان) هلته شورش او فتنه راپیل کړې ده، ج - احمدشاه ابدالي مجبوراً د مغولي ولیعهد احمد شرایط ومنل او موافقه ئې وکړه چي میرمنو دې د مغولو له خوا د لاهور والي وي، ځکه نو دواړي قواوي پر شا سوي وې (احمدشاه بابا افغان: ۱۰۳ مخ، افغانستان در مسیر تاریخ: ۳۶۱ مخ).

ځکه نو پر هند دوهم یرغل د افغانستان ژغورل او د ماہپیور د جګړې بدل وو، نه د مادي شتمنیو لوټول.

د دوهم یون په نتیجه کي پنجاب یو ځل بیا ونیول سو، نو ځکه «د پنجاب والي میرمنو د سولی وړاندیز وکړ څو چي د دواړو خواوو تر منځ د سولي یو تړون وسو چي د هغه له مخي میرمنو ژمنه وکړه چي شاه دې بیرته کندهار ته ستون سي او په بدل کی به د پنجاب د څلورو ولسوالیو (یعنی سیالکوټ، اورنګ آباد، ګجرات او پسور) عواید چي د کاله ۱۴ لکه روپۍ کېدې، افغان حکومت ته ورکوي. احمدشاه هم تر دغه تړون وروسته بیرته کندهار ته ستون او مشکل رفع سو» (افغانستان در پنج قرن اخیر: ۱۲۹ مخ).

پر هند ئې دریمه حمله په ۱۷۵۱ کي وه. د دې حملې علت د پنجاب د والي میرمنو د پورتنیو څلورو سیمو د عوایدو د ورلېږلو څخه بیرته انکار او سرغړونه وه. د غبار له قوله هغه په دوو کالو کي فقط څلور لکه روپۍ مالیه تحویل کړې وه. احمدشاه بابا لومړی هارون خان ور ولېږی تر څو میرمنو متوجه کړي. خو میرمنو معذرتونه وړاندي کړل. بیا ئې (سُکجیون مل) ور ولېږی خو دا ځل ئې صرف نهه لکه روپۍ ورکړې او بس. نو هغه وو چي احمدشاه بابا نوموړي ته د جزا ورکولو په مقصد حمله وکړه (درانی احمدشاه: ۵۵ مخ، افغانستان در مسیر تاریخ: ۳۶۳ مخ). د احمدشاهي لښکر تر بري وروسته میرمنو هم تسلیم سو او عرض ئې وکړ چي نور به لاهور او ملتان د افغانستان رسمي سیمي وي خو نوموړی به ئې والي مقرر کېږي او د کاله به پنځوس لکه روپۍ عواید په کندهار کي دولت ته تحویلوي. د ډیلي مغول واکمن هم دا تړون تصدیق او لاسلیک کړ او پنجاب نور نو رسماً په افغانستان پوری وتړل سو. دا تړون او وړاندیز د شاه بابا له خوا نه، بلکي د هندیانو له خوا وو. میرمنو هم خپله خزانه چي څه باندي لس ملیونه روپۍ وه، د مالیو په نوم د احمدشاه دولت ته وسپارله او د ربنتینولۍ لوړه ئې وکړه (احمدشاه بابا افغان: ۱۱۲ مخ).

څلورم یرغل ئې د ۱۷۵۶ په نوامبر کي ځکه وکړ چي میرمنو د سیکانو له خوا ووژل سو او شاه بابا د هغه مېرمن (مغلاني بیګم) د چارو متصدي کړه خو د ډیلي مغول واکمن هغه له کاره ګوښه کړه. غازي الدین چي د قدرت لېونی وو، د ۱۷۵۶ په مارچ کي لاهور د افغانستان څخه بېل کړ او مغولاني بیګم ئې

بندي کړه او پر ځای ئې آدینه بیګ وټاکی او د کاله ئې درې ملیونه روپۍ مالیه پر کښېښووله. هلته د کشمیر مستوفي (سکجیون مل) هم ښورښ وکړ او افغان والي (عبدالله) ئې ووژی او کشمیر ئې بیرته د افغانستان څخه جدا او په ډیلي پوري وتړی. نو هغه وو چې شاه بابا په ډېر تلوار راورسېد. خو د «اود» نواب (نجیب الدوله) چې غازي الدین د شاه بابا سره جګړې ته راولېږی، د ده سره جګړه لازمه نه بلله او ورسره مل سو. کله چې شاه بابا د نجیب الدوله په ملګرتیا ډیلي ته نږدې راورسېد نو مغول واکمن (دوهم عالمګیر محمد عزیزالدین) مجبوراً مخې ته ورغی او د هندوستان پاچهي او تاج ئې ورته تقدیم کړ. خو شاه بابا ځان د افغانستان څخه نه لیري کاوه، نو ځکه ئې دا پاچهي بیرته هغه ته محول کړه او د ۱۷۵۷ په جنوري کې د واکمن او نجیب په بدرګه ډیلي ته ورغی. دلته پوښتنه پیدا کېږي چې که احمدشاه بابا په رښتیا هم صرف د هندوستان پر شتمنیو مین وای، نو هغه ته خو دا مهال د ټول هندوستان تاج او تخت تقدیم سو، ولی ئې و نه مانه؟ آیا شاه بابا تر محمد غوري، بابر او نورو هم پاته وو؟ آیا د «بډای» هندوستان د پاچا په توګه به ډېر شمتن سوی وای او که د «غریب» افغانستان د پاچا په حیث؟

په هر حال، د احمدشاهي تاریخ مؤلف چې د شاه بابا د سفر ملګری وو، لیکي چې کله شاه بابا په ډیلي کې وو، نو یوه ډېره غمجنه پېښه رامنځته سوه. هغه دا چې د افغان پوځ هندوستاني ائتلافیانو د ډیلي ښار چور او لوټ کړ او یوه ستره تباهي پېښه سوه. کله چې شاه بابا خبر سو، نو سخت وخښمېد او پر ټولو افغاني او هندوستاني قوماندانانو ئې امر وکړ چې په هره توګه وي لوټ سوي مالونه او شتمنۍ باید بیرته پیدا او اصلي مالکانو ته وسپارل سي. د دې کار څارنه او مسئولیت ئې شاه ولي خان ته وسپاری او د امر مطابق اجرأت وسول. مګر دغه عیني شاهد د کوم ستر مبلغ د حصول یا کومي لویي خزانې د نیولو خبره نه ده کړې (تاریخ احمدشاهي: ۳۵۷ - ۵۸ مخونه)، حال دا چې احمدشاه بابا د سید محمد لطیف په حواله «دا مهال د پخواني وزیر غازي الدین څخه وغوښته چې د نهو ملیونو روپیو په ارزښت جواهرات او درې لکه اشرفۍ (چې هره اشرفي تقریباً ۱۶ روپۍ کېده) باید تحویل کړي [خو سراج التواریخ ئې پنځوس لکه روپۍ بولي، ۱۸ مخ]. هغه ځان ناګاره واچاوه. نو ځکه محرم خان خواجه سرای یعني د حرم سرای مسئول ته امر وسو چې د هغه کور د پیسو او جواهراتو په غرض تلاښي کړي. امر تعمیل سو او تر هغه مبلغ او مقدار چې احمدشاه ابدالي غوښتی وو، درې چنده زیات راووتل چې تر مځکي لاندي او د کور په مختلفو ځایو کې ئې پټ کړي وو. وروسته د ډیلي د نورو چارواکو کورونه هم تلاښي سول او خورا زیات ثروت پیدا سو. د قمرالدین خان د کونډې (شولا پوري بېګم) له کوره د څو لکو روپیو په ارزښت ګېڼې او جواهرت راووتل» (د پنجاب تاریخ: ۲۸۸ مخ).

شاه بابا هم افغانستان ته راوګرځېد او د ډاکټر ګنډا سنګهـ له قوله ستره شتمني په لاس ورغله چې اټکل ۱۲۰ ملیونه روپۍ کېدې (دراني احمد شاه: ۲۴۸ مخ). خو دا د ښاریانو لوټ سوې شتمني نه بلکي د چارواکو فساد وو.

پنځم یرغل ئې په ۱۷۶۰ کې ډېر مهم او څو عوامل لري چې مختصراً دا دي:

لومړی - غازي الدین او آدینه بیګ

یاغي سول، د مرهیټانو او سیکانو په کومک ئې لاهور او سرهند د افغانستان څخه بېل کړل (احمدشاه بابا افغان: ۱۲۲ مخ؛ افغانستان در پنج قرن اخیر: ۱۳۶ مخ؛ د پنجاب تاریخ: ۷۲ مخ؛ افغانستان در مسیر تاریخ: ۳۶۵ مخ).

دوهم- د غازی الدین او آدینه بیګ ځواکونو (بالترتیب په ډیلي او پنجاب کې) او هم د سیکانو سره د مرهیټانو ائتلاف د ډیلي څخه تر لاهوره پر افغانانو سخت ګوزارونه وکړل (احمدشاه وارث مجدد امپراتوری افغانستان: ۵۹۳ مخ؛ درانی احمدشاه: ۲۶۱، ۲۶۵، ۲۷۵ مخونه؛ سراج التواریخ: ۱۹ او ۲۰ مخونه).

درېیم – شاه ولي الله دهلوي، مغولی معزول واکمن (دوهم عالمګیر)، نجیب الدوله یوسفزي، شجاع الدوله او نورو مشرانو احمدشاه بابا وروباله تر څو هندي مسلمانان د مرهیټانو په مشری د کفارو له ظلمه خلاص کړی (افغانستان در پنج قرن اخیر: ۱۳۵ مخ؛ د افغانستان نومیالي: ۲۳۵ مخ؛ درانی احمدشاه: ۲۰۱، ۳۰۰ مخونه؛ سراج التواریخ: ۲۰ مخ).

څلورم. تر ټولو مهم دا چي مرهیټان نور نو د افغانستان سره پر سرحد ودرېدل، آینده پلان ئې دا وو چي د افغانستان پایتخت کندهار هم ونیسي (کوشیک روی، د هند تاریخي جګړې: ۸۰ – ۸۱ مخونه).

نو شاه بابا پر هند بالاعم او پر مرهیټانو بالاخص ځکه برید وکړ تر څو:

الف – په پنجاب کي خپل مقبوضات بیا تر لاسه کړي (درانی احمدشاه: ۲۹۹ مخ؛ سراج التواریخ: ۲۱ مخ).

ب – د لاهور څخه د تېمورشاه او جهانخان د تېښتي بې حیثیتي بیرته اعاده کړي (درانی احمدشاه: ۲۹۹ مخ).

ج – مرهیټانو ته د دې عمل سزا ورکړي (هماغه: ۲۹۹ مخ).

د – د مغولي دولت ضعف او بې کفایتی ته کومه چاره ولټوي (سراج التواریخ: ۱۸ مخ).

و – تر ټولو مهم دا چي افغانستان ته ورپېښ تهدید له منځه یوسي (درانی احمدشاه: ۹۸ – ۹۹ مخونه؛ د پاني پت قهرمان: ۶۱ مخ؛ احمدشاه بابا افغان: ۵۷ مخ).

آیا د پورتنیو دلایلو او شواهدو له مخي پر هندوستان د شاه بابا وردانګل صرف د شتمنیو په غرض وو که د اسلامي او سیاسي مسئولیت او هېواد ژغورني په خاطر؟

په هر حال، نو هغه وو چي «احمد شاه ابدالي د ۱۷۵۹ په نوامبر کي پنجاب ته داخل سو او هغه ئې بیرته ونیوی. روهیله افغانانو ئې اطاعت ومانه او په ګډه تر جمنا پوري وتل او د ۱۷۶۰ په مارچ کي ئې علیګړ ونیوی او د «اود» د نواب شجاع الدوله سره ئې د دوستی تړون امضأ کړ» (د پنجاب تاریخ: ۷۲ مخ).

په دې ډول د پاني پت لویه او پرېکنده جګړه د ۱۷۶۱ د جنوری پر ۱۴ مه پېښه سوه چي په هغه کي مرهیټانو د خپل عمل سزا ولیده، خو متأسفانه د شاه بابا سیاسي اهداف تر سره نه سول چي هغه په دې ډول ول:

لومړی – د سقوط او رکود څخه د مغولي نښتځلي دولت خلاصون (افغانستان در پنج قرن اخیر: ۱۳۹ مخ).

دوهم – پنجاب د افغانستان د یوې دایمي برخي په توګه لرل او ساتل (درانی احمدشاه: ۳۴۷ – ۴۸ مخونه).

درېیم – د برتانوي را روان استعمار دفع او رفع کول (افغانستان در مسیر تاریخ: ۳۷۰

مخ).

ځلورم – د سيکانو کمزوره او بې وسه کول (افغانستان در پنج قرن اخير: ۱۴۰ مخ).

پنځم – دغه جنګ ټول اړخونه ( مثلاً انګرېزان او سيکان) ګټمن کړل خو د جګړې اصلي لوبغاړي يعني افغانان او مرهيټان دواړه ئې زيانمن کړل (هماغه: ۱۴۰ مخ).

ځکه نو ويلای سو چې دا برې بېړنی او ځغلنده وو، نه بنستيز او تلپاته. ډاکټر ګنډاسنګه په دې رايه دئ چې: «شاه د مريانو، نغدو پيسو، جواهراتو، فيلانو، اوښانو، آسانو، او نورو مالونو څخه پرته چې په افغانستان کي ئې خپل خلک ورباندی ماړه کړل، د دغي لويي او غوڅي فتحي څخه کومه سياسي ګټه تر لاسه نه کړه (درانی احمدشاه: ۳۴۶ مخ). خو زياتوي چې: «دا به هم عادلانه نه وي چې د ده په باب د نن ورځي د معيارونو له مخي قضاوت وکړو» (هماغه، مقدمه: ديرشم مخ).

ډېره مهمه خبره دا ده چې د احمدشاه بابا دولت څو اړخيزه عايدات لرل چې عمدتاً په دې ډول ول:

لومړی – د مځکو، جايدادونو، پيداوارو، تجارت، څارويو او نورو څخه ماليه اخيستل.

دوهم – د بهرنيو واکمنانو، چارواکو او مشرانو سوغاتونه او تحفې.

درېيم – ولجه او جنګي غنيمت چې د جګړې پر ډګر ئې د مغلوب پوځ څخه حاصلول.

څلورم – د جنګ تاوان چې څو ځله ئې د تړونونو پر اساس د ډيلي او پنجاب د چارواکو څخه واخيست.

پنځم – د افغانستان سره د تړلو سيمو (لکه کشمير، ملتان، پنجاب، سيند) کالنی ماليې چې خورا ستر مبلغ کېدی.

شپږم – ججې، جزيې او جريمې چې پر فاسدو چارواکو، نامسلمانو اتباعو، او مجرمو کسانو وضع کېدلې.

د دغو ټولو له درکه هر کال په اوسط ډول احمدشاهي دولت يو ديرش (۳۱) مليونه روپۍ عايد تر لاسه کاوه چې د دې مبلغ ٪۷۰ ئې په خپل پوځ او متباقی ٪۳۰ ئې په عمراني، خدماتي، عام المنفعه او نورو برخو کي مصرفول (افغانستان در مسير تاريخ: ۳۵۸ مخ؛ د درانيانو امپراتوري: ۱۲۶ مخ؛ احمدشاه بابا افغان: ۸۷ مخ).

هو! يو ځل بيا ګنډاسنګه د يو سيک په حيث: «زه د ده پر خلاف د تعصب له مخي را لوی سوی او روزل سوی وم او ما ته يوازي دا را زده سوي ول چي دی يو داړه مار او لوټمار مشر دئ چي د ولجي له پاره پر هند راکښته سو او په ټنونو سره زر او په زرهاوو هندي مريان ئې افغانستان ته د ځان سره يوورل. خو هر څومره چي مي د ده په باب زياته مطالعه وکړه هغومره د ده د سترتوب خصوصياتو پر ما ژوره اغيزه وکړه او زما ذهن ته ئې په خپله نفوذ وموند» (درانی احمدشاه، مقدمه: دوه ديرشم مخ).

وګورئ «احمد شاه د خپلو بهرنيو پوځي عملياتو په نتيجه کي يوه ستره اندازه شتمني چي له ولجو څخه جوړه وه، راغونډه کړې وه. خو د افغانستان ماليات يا عايدات هيڅکله د ده په شخصي صندقچو کي نه اچول کېدل... ده به په ښکاره توګه د جنګ ولجه او غنايم په خپلو افرادو وېشل او ده به تل دوی د ولجي په برخه کي خپل شريکان ګڼل» (درانی احمدشاه: ۴۵۸ – ۵۹ مخونه).

که شاه بابا هر څه هم ورسره وړي وي، نو

سوال دا دئ چي هغه ټول څه سول؟ او بل دا چي غنیمت، ولجه، ججه (باج) خو د هغه مهال د مسلطو او عنعنوي شرایطو یوه حتمي برخه وه. کوم واکمن دغسي نه دي کړي؟ او کوم تاریخ ولجه، غنیمت او جنګي تاوان غندلی دئ؟ ځکه نو د اتلسمي پېړۍ مروج طرزالعمل باید د یوویشتمي پېړۍ په ترازو کي و نه تلل سي او نه هم دغسي قضاوت څه معقولیت لري.

فلهذا، شاه بابا به هرځل هند ته صرف د شتمنیو له پاره نه بلکي د افغانستان د ژغورني، ساتني او پالني په نیت تلی چي شواهد او مدارک ئې پورته مختصراً ذکر سول. «که احمدشاه له سُتلجه اخوا پوریوتی هم دئ، نو موخه ئې د سِند د سیمي ساتل وه، نه دا چي خپل غېږ تر سره کړي یا هېوادونه ونیسي» (احمدشاه بابا افغان: ۵۷ مخ).

وګورئ، د «سلطان التواریخ» مؤلف ناراین سینګ لکهنوي چي په خپله هم هندو دئ، د خپل دغه تألیف په ۱۶۴ مخ کي داسي لیکي: «مرهټه بهاو چي د دکن لښکري د ده جنګ ته له دکنه راوبهولې، ده په پاني پت کي د زړه سوي له مخي هغه ته د سولي پیغام ورولېږه. مګر هغه مغرور دکني سپهسالار په جواب کي د ده ایلچي ته وویل: «احمدشاه که تر کابله پوري ټولي سیمي موږ ته راپرېږدي، سوله به وکړو». احمدشاه ابدالي چي دا تریخ جواب واورېد وئې ویل: «اوس نو په جنګ کي زموږ مسئولیت نسته». (د پانی پت قهرمان: ۶۱ مخ، د سلطان التواریخ د خطی نسخي د ۱۶۴ مخ په حواله). آیا اوس هم د هند د شتمنیو د لوټولو ادعا معقولیت لري؟

خو که موږ بیا هم د هر هېواد لیکلی تاریخ په غور ولولو، نو متأسفانه وبه مومو چي د یوې خوا ښاغلی د بلي خوا رټلی وي، د یوې خوا بری د بلي خوا سپکاوی وي، او د یوې خوا قهرمان د بلي خوا شیطان وي. که موږ اکثریت نن د سلطان محمود غزنوي یا محمد غوري یا ابراهیم لودي یا شېر شاه سوري او یا هم احمدشاه بابا ستاینه کوو، نو اکثریت هندیان ئې بیا غندنه کوي او که برعکس موږ د مرهټانو، سیکانو، جټانو او راجپوتانو د مشرانو (مثلاً پیشوا باجي راو، شیواجی، چَرَت سینګ، رګوبا، رنجیت سینګ او نورو) رټنه او غندنه کوو، نو برعکس د هغوی پیروان ئې بیا ستاینه او لمانځنه کوي او مجسمې ئې دروي. دا لا څه، که نن موږ دننه په خپل هېواد کي هم کوم معلوم الحال جنګسالار غندو، نو د هغه پیروان ئې بیا ستایي. که ئې موږ ملي خاین وبولو نو هغوی به ئې ملي اتل وبولي. نو چیري دئ د تاریخ معقول او بېطرفانه قضاوت؟ څو لسیزي حتی څو سلیزي نور هم باید دغسي عادلانه قضاوت ته منتظر سو؟ داسي نه چي موږ تاریخ جوړوو، خو راڅخه جغرافیه سي!

هو! دا هغه تریخ حقیقت دئ چي نن ئې د تاریخ هر کتاب واضحاً راته وایي. نو پوښتنه دا ده چي تاریخ د دغسي تمیز او تشخیص له پاره اوس اوس څه قضاوت کولای سي؟ جواب ځکه مکدر او مبهم دئ چي د یوې خوا تاریخ بله خوا غندي او د بلي خوا تاریخ بیا خپل لوری ستایي خو مقابل لوری غندي. وګورئ که موږ په افغانستان کي د تاریخ تقریباً هر کتاب ولولو، نو هغه به د محمود غزنوي، محمد غوري ... احمدشاه ابدالي مطلق صفت او د مخالف لوري مطلق غیبت وکړي. په همدې ډول که موږ د هندوستان تقریباً هر تاریخي اثر ولولو، نو هغه به هند ته ورغلي افغاني واکمنان یرغلګر، لوټمار،

ظالم او بدمعاش وبولي، حال دا چي خپل تاريخي مشران به اتلان او مهربان وښيي. دا هغه ثابت حقيقت دئ چي نه «هغوی» او نه هم «موږ» سترگي پر پټولای سو.

که احياناً قضاوت درپيمو ته وسپارل سي نو و به گورو چي هغوی لږ يا ډېر دواړي خواوي ترټي او ملامتوي حال دا چي قطعي پرېکړه نه کوي چي ښه مثالونه ئې په نونسمه پېړۍ کي په لندن کي خپاره سوي تاريخي آثار دي.

وگورئ، که موږ هر څونه ډېر هم په شواهدو سره وښيو چي سلطان محمود غزنوي د اسلامي دعوت او رغبت له مخي هندوستان ته ورغلی وو، خو هندي تاريخپوهان به ووايي چي دا ستاسي ادعا ده، بلکي هغه د هند جواهراتو او خزانې ورکشاوه. که موږ هر څومره ډېر په اسنادو سره وښيو چي احمدشاه بابا د مرهيټانو څخه د هندي مسلمانانو د نجات او د افغانستان د بقأ له پاره هند ته ورتی، خو هندي تاريخ پوهان به وليکي چي يا، دا ستاسو ادعا ده، بلکي هغه د هندوستان پر شتمنيو مين وو. که په دې اړه درپيمو ته مراجعه وکړو نو د هغوی اکثريت څکه زموږ په زيان رغبدلي دي چي د خپل هېواد اشغال ته مو نه دي پرې ايښي، له هېواده مو شړلي او مات کړي دي.

چي داسي ده، نو بايد څه وکړو؟ حل لاره ئې ډېره آسانه يعني دا ده چي مطلق حُکم، مطلق پلويتوب، مطلق ضديت او مطلق احساسات پرېږدو بلکي د «حق» شاهدان اوسو که آن هغه زموږ د خپلو ځانو، والدينو او اقاربو په زيان هم وي، که د چا خوښه وي يا نه، همدا د خدای امر دئ (النسأ: ۱۳۵). والسلام.

هغه اخځونه چي د دې ليکني په تهيه کي ورڅخه گټمن سوی يم، دا دي:


۱. سراج التواريخ، فيض محمد کاتب، کابل، ۱۳۳۱ هجری قمری.
۲. درانی احمدشاه ، ډاکټر گنډاسنگه، ژباړن: نصرالله سوبمن منگل، کابل، ۱۳۶۶ لمريز.
۳. تاريخ احمدشاهی، محمود الحسينی، پېښور، ۲۰۰۱.
۴. احمدشاه وارث مجدد امپراتوری افغانستان، لومړی جلد، عزيزالدين وکيلی پوپلزايی، کابل، ۱۳۵۹.
۵. احمدشاه بابا افغان، مير غلام محمد غبار، ژباړن: امين الله دريځ، پېښور، ۱۳۷۷ لمريز.
۶. د درانيانو امپراتوري، يو. و. گانکوفسکي، ژباړن: پوهندوی دکتور گل محمد نورزی، کابل، ۱۳۵۷.
۷. احمدشاهي شهنامه، حافظ مرغزی، پېژندنه او تعليقات: پوهاند رشاد، کندهار، ۱۳۸۷.
۸. افغانستان در مسير تاريخ، مير غلام محمد غبار، کابل، ۱۳۴۶ شمسي.
۹. د پاني پت قهرمان (دوهم چاپ)، پوهاند رشاد، کراچي، ۱۳۷۶ لمريز.
۱۰. افغانستان در پنج قرن اخير، مير محمدصديق فرهنگ، مشهد، ۱۳۷۱.
۱۱. د افغانستان نوميالي (درېيم ټوک)، عبدالرؤف بېنوا، کابل، ۱۳۵۶.
۱۲. د هند تاريخي جگړې: د لوی سکندر څخه تر کارگيل پوري، کوشيک روی، نوی ډيلی، ۲۰۰۴.
۱۳. د پنجاب تاريخ له ډېر پخوا نه تر اوسه، سيد محمد لطيف، لندن، ۱۸۹۱ ميلادی.

لیکوالان: خالد اقبال یاسر او محمد ارشد رازي



مترجم: نثار احمد آریا

# نوبل جایزه وړونکي ادیبان

(دوهمه برخه)

د ادب پر نوبل جایزه چې په نړیواله کچه کوم انتقادونه کېږي، په دې کې هیڅوک دې خبرې ته پام نه کوي، چې نه یوازې د کمیسیون معیارونه او نظر له وخت او زمان سره بدل سوي دي، بلکي د کمیسون غړي هم خپلواک نه ول. څرګنده خبره ده، چې د ۱۹۵۰م کلونو کمیسیون د لومړۍ لسیزي له کمیسون سره بېخي بېل وو. د نوبل جایزې د ګټونکو په لیست کي د لومړنیو کسانو په ټاکنه کي د کمیسون غلطي بېخي څرګنده ده. د بېلګي په ډول د سلې پرودم، ائیوکن او هائی زو (Heyse) پر ځای باید تولستوی، ابسن او هنري جېمز ته جایزې ورکړل سوي وای. اصلاً حقیقت دا دئ، چې دې کمیسون د داسي پرېکړو ورتیا نه لرله. دې ټولو خلکو په عمومي او سیاسي توګه ډېر ارتجاعي فکر درلود. د کمیسون د غړو د ادبي ذوق په اړه هم مثبت فکر نه سي کېدای. دوی د دې له پاره داسي پرېکړې وکړې، چي په سکینډې نیویایي هیوادونو او په ځانګړي ډول سویډن کي د انقلابي ادب مخه ډب کړي. د کمیسیون دا عمومي چلند د دریمي لسیزي تر شاوخوا پوري دوام درلود. د څلورمي لسیزي په اوایلو کي اینډرز آسټرلنګ Anders Osterling د اکاډمۍ سکرتر وټاکل سو. د اکاډمۍ ډېر غړي تبدیل سول. په دې ډول له یوه نظره د کمیسون مسیر له سره تعین سو او کمیسیون په لومړي پلا وتوانېد، چي لږ تر لږه

د غربي نړۍ پر تقريباً ټولو لويو اديبانو نظر واچوي. په مجموعي ډول له دوهمې نړيوالې جګړې وروسته ورکړل سوي جايزې وستايل سوې. د دې کلونو پر ورکړل سويو جايزو باندې سوې نيوکې د سياسي تمايلاتو له امله وې. له اسيا څخه به ډېر کله دا ږغونه پورته کېدل، چې کميسيون خپله توجه پر اروپا متمرکزه کړې ده. البته په اتمه لسيزه کې سوينکا (Soyinka) او نجيب محفوظ ته ورکړل سوي جايزې له دې نيوکې څخه مستثنی بلل کېدای سي.

په لومړي کال ۲۵ کانديدان رامنځته سول. د کميسيون غړو خپل د نوموني د صلاحيت له کارولو څخه انکار کاوه. دوی په دې پوهېدل، چې د بېطرفۍ له پاره دا مهمه ده، چې د کانديدانو ليست له دباندې څخه راسي. په ۱۹۰۱م کې د تولستوی د کانديدۍ له پاره هيڅ وړانديز را نه غلی او د کميسيون هيڅ غړي هم نه غوښتل، چې دغه کار وکړي. د لومړۍ نړيوالې جګړې پر مهال هم د کانديدانو شمېر ډېر کم سو. په ۱۹۱۹م کې (۱۲) کانديدۍ راغلې، په داسې حال کې چې په ۱۹۱۳م کې ئې شمېر (۲۸) وو. دا چې د کانديدانو شمېر بېخي کم وو، نو کميسيونونو د کانديدانو د پېشنهاد کولو، صلاحيت استعمال کړ. په ۱۹۱۶م کې د کميسون غړو پخپله پنځه نومه وړانديز کړل. په اوسنيو کلونو کې د کميسيون غړي بلکې د کميسيون نور کسان هم په منظم ډول کانديدۍ وړاندې کوي، تر څو د کانديدانو ليست تر ممکنه بريده بشپړ او د نړيوال ادب نماينده وګرځوي.

د شلمې پېړۍ په وروستيو کلونو کې د کانديديو شمېر تر (۲۰۰) دوو سوو پورې رسېدلی وو.

نوبل کميسيون له درو څخه تر پنځو پورې غړي لري. دغه کسان د سويډني اکاډمۍ څخه غوره کېږي. له دباندې څخه ډېر کم وخت کوم غړی غوره کېږي. د کميسيون له دندو څخه دا هم ده، چې د کانديديو نظارت وکړي او وړاندې سوي اړوند اسناد په غور ولولي. مخکې به لومړي کميسيون په متفق ډول يوازې يو نوم اکاډمۍ ته وړاندې کاوه او اکاډمۍ به عموماً دغه وړانديز مانه، خو ځيني جايزې له دې اصل څخه استثنا هم ليدل کېږي. د مثال په توګه اکاډيمۍ په ۱۹۱۳م کې رابندر نات ټيګور او په ۱۹۲۷م کې هنري برګسا ته ترجيح ورکړه. له ۱۹۷۰م راهيسې د کميسيون غړي خپل وړانديزونه او راپورونه په فردي ډول وړاندې کوي. په دې ډول نه يوازې دا چې کميسيون ته د بېلابېلو نظرياتو د اوربدلو موقع په لاس ورځي، بلکې د کميسيون اغېز هم ډېرېږي.

کميسون بايد تر ټولو مخکې د شاوخوا (۲۰۰) دوو سوو کانديدانو ليست (۱۵) پنځلسو ته راکم کړي. دا کار عموماً په يوه ورځ بشپړېږي. د مۍ د مياشتې تر پايه پورې دغه ليست تر لاچاړ وروسته شاوخوا پنځو کسانو ته را محدود کېږي او بيا نو د دوبي پاته برخه د همدې پنځو کسانو په اړه پر غور او فکر او د دوی د آثارو پر څېړنه تېرېږي. د سپتمبر په منځ کې د کميسون غړي يو ځل بيا د غونډو په کولو پيل کوي. کميسيون بايد

شاوخوا د یوې میاشتي په دننه کي خپله پرېکړه وکړي. دا هم ښکاره خبره ده، چي په یوه یا دوو میاشتو کي د دې پنځو غړیو ټول کار نه سي ویل کېدای. په عمومي ډول د تېر کال پر هغو کاندیدیو بحث کېږي، چي پر مطالعه ئې یو کال لګول سوی وي. دلته به دا وضاحت بې ځایه نه وي، چي له تېرو څو کلونو راهیسي د کاندیدانو د وړاندیزو تر راتلو یو کال وروسته پرېکړه کېږي. په ۱۹۳۸م کي پرل بک (Pearl Buck) ته د همدې طرزالعمل په پس منظر کي جایزه ورکړه سوه. د کمیسیون اقلیت غړو آن د سپتمبر پر ۱۹ د دې په ملاتړ کي کمپاین پیل کړ او پرته له دې چي په دې اړه مناسب غور او فکر وسي، جایزه ورکړل سوه.

په عمومي ډول د اکاډیمۍ رئیس او سکرتر یو کس وي. البته ځیني وختونه په موقت ډول دا چوکۍ بېلي کړل سوي هم دي. د مثال په ډول کارل ډیوډ ایف ورسن له ۱۹۰۰م څخه تر ۱۹۱۲م پوري د کمیسون رئیس وو. پرهالستروم (Per Hallstrom) له ۱۹۲۲م څخه تر ۱۹۴۶م پوري رئیس او له ۱۹۳۱م څخه تر ۱۹۴۰م پوري سکرتر هم وو. اینډرز آسترلنګ له ۱۹۴۷م څخه تر ۱۹۷۰م پوري رئیس او له ۱۹۴۱م څخه تر ۱۹۶۴م پوري سکرتر وو. کارل ریګنر ګیرو (Karl-Rangnar Gierow) له ۱۹۷۰م څخه تر ۱۹۸۰م پوري رئیس او له ۱۹۶۴م څخه تر ۱۹۷۷م پوري سکرتر وو. لارس ګائلنسټن له ۱۹۸۱م څخه تر ۱۹۸۷م پوري رئیس او له ۱۹۷۷م راهیسي د سکرتر په توګه دنده تر سره کوي. یوازینۍ استثناء له ۱۹۱۳م څخه تر ۱۹۲۱م پوري زمانه ده، په دې وخت کي راپورونه تاریخ لیکوال هیرالډ هیار نې (Harald Hjane) لیکل. له ګائلنسټن وروسته کائل ایسپمارک (Kjal Espmark) رئیس سو او ستر ایلن (Sture Allen) د سکرتر په توګه وټاکل سو.

ستر ایلن د ایډیال په اړه وویل، چي د نوبل له پاره دې ستاینوم (اسم صفت) کومه خاصه ټاکلې معنا نه لرله. د ده یوه معاصر سټرنډبرګ (Strindberg) یادونه وکړه، چي د وصیت په لومړۍ مسوده کي دا لفظ نه وو، بلکي نوبل په خپل لاس پر اضافه کړ. له دې څخه ایلن دا نتیجه واخیسته، چي له دې څخه د نوبل هدف اصلاً هغه لار وه، چي ایډیال ته تللې وي. په دې توګه نو کمیسیون دا نتیجه تر لاسه کوي، که په یو اثر (لیکنه یا شعر) کي د انسان پالني پر خلاف یو څه موجود وي، نو که هغه له هرڅونده تخنیکي او هنري ښېګڼو څخه برخمن وي، بیا هم په هیڅ صورت د نوبل جایزې وړ نه دئ.

د ادب نوبل جایزه پر دوو کاندیدانو وېشل کېدای سي، خو پر درو نه. یوه جایزه دوې برخې کول، هم په اصل کي د یو جوړجاړي نتیجه ده، ځکه کله چي د کمیسیون غړي پر یوه کاندید پرېکړي ته نه ورسیږي، نو یو بل کاندید هم رامخ ته کړي. په ۱۹۰۴م کي له فریډرک مسترال او هوسې ایچیګارائی سره همداسي وسول. په ۱۹۱۷م کي له یلعروپ او هنرک پونټوپډان سره هم همداسي وسول. په دې اړه په ۱۹۷۰م کي یوه کړنلاره جوړه سوه، پر کومو دوو کاندیدانو چي جایزه وېشل کېږي، په هغو کي باید یو مشترک

ارزښت موجود وي. پر دې اساس به نو د جایزې نقدي رقم له دوو کاندیدانو څخه یوازي یوه ته ورکول کېږي.

په طبعي ډول سویډني اکاډیمۍ همېشه ژبنی مهارت په لومړیتوبونو کي نیولی دئ. انګلیسي، فرانسوي او جرمني تر اوسه کومه ستونزه نه ده رامنځ ته کړې، ځکه د کمیسیون څو غړي په دې ژبو کي تکړه مترجمین پاته سوي دي. هسپانوي او ایټالوي هم همداسي وبولئ. د اکاډیمۍ غړو د دې له پاره چي په خپلو مسئولیتونو کي ښه والی رامنځ ته کړي، شرقي ژبي هم زده کړي دي. د بېلګي په ډول د کمیسیون یوه غړي ایسا ټېګز جونئیر (Esaias Tegner Jr.) ټېګور په بنګالي کي مطالع کړی وو، خو ده د خپل ډاډ په خاطر هغه انګلیسي ترجمه هم ولوسته، چي خپله ټېګور کړې وه. همداسي ایچ ایس نائبرګ (H.S.Nyberg) پر عربي ادبیاتو باندي مبصرانه نظر ساته. په غربي نړۍ کي د چیني ادب تر ټولو وتلی څېړونکی ګوران مالمکوئسټ (Goran Malmqvist) هم د اکاډیمۍ غړی پاته سوی دئ. همداسي په اوس وخت کي په اکاډیمۍ کي داسي کسان هم موجود دي، چي پر روسي باندي لاسبري دي. پر دې هر څه سربېره کمیسون له نورو کارپوهانو څخه هم مشورې اخلي. د کومو آثارو ترجمې چي په انګلیسي، فرانسوي، جرمني او یا سکینډې نیویایي ژبو کي نه وي، هغه را ژباړل کېږي. په ځینو وختو کي دغه هڅي د دې سبب ګرځي، چي هغه اذهان ټولي نړۍ ته ور معرفي کړي، چي د ګمنامۍ په کنده کي پراته وي.

د نوبل د ادبي جایزې سیاسي رازونه همېشه تر بحث لاندي نیول سوي دي. دغه تمایل په ځانګړي ډول د سړې جګړې پر مهال ډېر زیات وو. سویډني اکاډیمۍ په بېلابېلو وختو کي هیله څرګنده کړې، چي تر سیاسي محاکمو لوړ چلند وکړي، خو د دوی په دې چلند د نورو هیوادونو (په ځانګړي ډول شرقي هیوادونو) سر نه خلاصېږي. ځکه له دوی سره دا پوښتنه وي، په داسي حال کي چي اکاډیمي له (یو خاص) دولت سره اوسېږي، نو بیا څنګه امکان لري، چي بې طرفه پاته سي؟ (په دې اړه) لومړۍ خبره دا ده، چي دولت له اکاډیمۍ سره هیڅ ډول مالي مرسته نه کوي او نه هم اکاډیمي په خپلو چارو کي لاسوهنه زغملای سي. (له دې امله) دولت دا غوره بولي چي له دې مسایلو لیري واوسي. دلته دا یادونه هم ضروري ده چي د نورو نړیوالو جایزو غوندي نوبل ادبي جایزه هم خپل سیاسي اثرات لري، البته سیاسي اثرات او سیاسي اغراض باید یو ډول تعبیر نه سي. د نوبل ادبي جایزې له سیاسي اغېزو څخه بغل ته کېدل ناممکن دي، خو لکه څونده چي د دې اغېزو څخه ساتنه ناممکن کار دئ، همدونده د دې اغېزو په اړه پیشګویي هم ناممکنه ده. د کمیسیون د خپلواکۍ د ثبوت له پاره موږ کولای سو، چي سولژنټسن ته پر ورکړل سوي، جایزې باندي غور وکړو. (په دې وخت کي) کمیسون په دې پوهېده، چي که پاسترناک ته جایزه ورکړي، نو د شوروي اتحاد حکومت به له هغه سره هر هغه څه وکړي، چي فکر ئې کېدای سي. په دې وخت د کمیسیون سکرټر کارل ریګنر ګیرو یو داسي کار وکړ، چي له توقع څخه لوړ وو. هغه

په ماسکو کې د سویډن له سفیر گنار جیرنگ (Gunner Jarring) څخه مرسته وغوښته، چې دا معلومه کړي، که چیري پاسټرناک ته جایزه ورکړل سي، نو له هغه سره به څنگه چلند وسي. جیرنگ کمیسون ته یو لیک واستاوه او په لیک کې ئې دا څرگنده کړه، چې که چیري سولژنتسن ته جایزه ورکړل سي، نو دا به د شوروي اتحاد او سویډن پر اړیکو منفي اغېز وکړي. کمیسیون د سفیر په جواب کې ولیکل، چې ښایي ستاسو تحلیل درست وي، خو کمیسیون داسي فکر کوي، چې سولژنتس د نوبل جایزې له پاره تر ټولو غوره کاندید دئ. په دې ډول کمیسیون دا ثابته کړه، چې په خپلو پرېکړو کې د سویډن د خارجه وزارت پروا نه کوي او په دې ډول ئې یوازې دا څرگندول غوښتل، چې جایزه گټونکی له کوم خطر سره مخ نه وي. د کمیسیون او سفیر تر منځ مکالمه د دې ثبوت دئ، چې کمیسیون د جایزې له سیاسي رموزو څخه خبر وو، خو هغه د دې رموزو پروا و نه کړه.

د نوبل جایزې په تاریخ کي ونستن چرچل ته ورکړه سوې جایزه ډېره مهمه ده. دې جایزې په کمیسیون کي موجود ډېر نازک توازن له خطر سره مخ کړی وو. دغه جایزه تر څو کلونو بحث وروسته ورکړه سوه. تر دې مهاله پوري د کاندید پر جنگي کارنامو باندي د وخت غبار غوړېدلی وو، ځکه نو دغه څنډ د نوموړي د ادبي استعداد د منلو له پاره ضروري وو، خو د بېلابېلو کړیو اعتراضونو دا ثابته کړه، چې د کمیسیون دغه هیله ناسمه وه. کمیسون چرچل ته دغه جایزه د یو مؤرخ او ادیب په توگه ورکړې وه. دوی داسي بللې وه، چې چرچل یو داسي چاقو دئ، چې په هغه کي د سمت معلومولو آله هم موجوده ده. دلته نو اصلي ستونزه دا وه، چې تر جگړې یوازي اته کاله وروسته د چرچل د شخصیت دوه اړخونه (د چاقو او د لارښوونې د آلې خاصیت) څنگه سره جلا کړل سي. په هر صورت چرچل نه یوازي دا چې د دوهمي نړیوالي جگړې د فاتحینو لارښود وو، بلکي د سرې جگړې پر مهال هم څواکمن مشر وو. د کمیسیون دا فیصله یوازینۍ پرېکړه وه، چې پر سیاسي رموزو ئې خورا ډېر بحث وسو او د کمیسیون بې طرفي تر پوښتني لاندي راغله. دې حالت کمیسون دې ته مجبوره کړه، چې یو اصل رامنځ ته کړي. همدا وجه ده، چې له دې وروسته د آندرې مالراکس (Andre Malraux) او لیو پولډ سینگهور (Leopold Senghor) غوندي کسانو نوموړنه په پرلپسې ډول رد کړل سول. په تېرو څو کلونو کي په ورکړل سویو جایزو کي، میووش ته ورکړل سوې جایزه هم سیاسي بلل کېږي. په دې اړه ځینو کسانو دا پوښتنه کول، چې ایا میووش ته ورکړل سوې جایزه خو به له دې امله نه وه، چې په دې وخت کي پولنډې ژبه خورا د عامېدو په حال کې وه؟ البته هغه کسان چې په دې نظر ول، هغوی دا خبره له پامه غورځولې ده، چې دغه نوم له څونده مهاله تر غور لاندي وو. د کمېټې یوه غړي دا یادونه هم وکړه، چې په نړیواله کچه د پولنډ مطرح کېدل د پولنډ د ډانزیگ اعتصاب (Danzig Strike) له امله وو، او په دې کې د میووش جایزه هیڅ رول نه لري، ځکه هغه د څلورو پنځو کلونو راهیسې د کمیسیون په لیست کي راروان وو. حتی نوموړي اعتصاب د کمیسیون ځیني غړي میووش ته د جایزې د ورکړې په پرېکړه کي لا زړه نازړه کړل. البته دا چې یوازي د هیواد د حالاتو له امله یو مستحق کس له جایزې څخه بې برخي کېدلای نه سوای، ځکه ئې نو نوموړي ته جایزه ورکړه. له پورتنیو

ثبوتونو څخه داسې ښکاري، چې د کميسيون
د ټاکني جرګه ګۍ نه غواړي، چې د جايزې له
لارې سياسي اغېزې وشندي. همدا رنګه
غواړي چې په همدې جديت سره خپلې
پرېکړې د سياسي حالاتو له اثراتو څخه
خوندي وساتي. همدا ډول دا عمل هم د
کميسيون د اخلاقي نورم خلاف کار دئ، چې
د يوې خاصې ملاحظې يا حالت له کبله يو
کانديد رد کړل سي. د ۱۹۸۴ او ۱۹۸۷م کلونو
نوبل جايزه وړونکي جيروسلاف سيفرټ
(Jaroslav Seifert) او جوزف براډسکي
(joseph Brodsky) د خپلو هيوادو ياغيان
بلل کېدل. دې درو جايزو د اروپا په ختيځ کې
خورا بېتابي خپره کړه. البته دا په اسانۍ سره
مشاهده کېداى سي، چې اکاډيمي خپله
اصلي پاملرنه يوازې پر ادب باندې متمرکزه
کړې وه. د اکاډيمي سکرټر په وار وار د
معاصرو عظيمو شاعرانو د موجوديت او د
جايزې د اهدافو د غوښتني لور ته په پوره زور
سره پام وکړ، خو بيا هم په بشپړه ډول د
سياست له پامه غورځول له امکانه وتلې خبره
ده. هيڅ ستر شاعر په مطلق ډول له سياست
څخه نه سي ليرې کېداى، ځکه د ده وينا د
ټولني عکاسي ده. که څه هم د نوبل کميسيون
د هنرمند د وطن له سياسي حالاتو سره څه
خاص سروکار نه لري، خو د هغه جايزه دا خبره
خامخا تر بحث لاندې راولي، چې هنرمند د
ژوند د تجربې د بيانولو له پاره له کوم تخليقي
ځواک څخه کار اخيستى دئ. دا چې هنرمند د
ټولني له سياسي نظرياتو څخه محفوظ نه
وي، ځکه نو د جايزې تړاو په ګلي ډول پرې
کېداى نه سي.

د نوبل جايزې په تاريخ کې د مطبوعاتو
غبرګون هم ډېر مهم رول درلودلی دئ.
کميسيون په عمومي ډول هغو اشخاصو ته
جايزه نه ورکوي، چې د مطبوعاتو په
سرليکونو کي راځي. همدا لامل دئ، چې
نړيوال مطبوعات په پرلپسې ډول د نوبل پر
کميسيون نيوکي کوي. د ۱۹۷۰م کلونو په
شاوخوا کي مطبوعاتو ګراهم ګرين
(Graham Greene) د کال تر ټول غوره
کانديد باله، خو جايزه اليکزنډر
سولژينتسايين (Aleksandr Solzhenitsyn)
ته ورکړه سوه. دواړه کانديدان ډېر وړ او د دې
جايزې مستحق ول. د ۱۹۵۱م کال د جايزو له
پاره له ۳۵۰ کارپوهانو سره تماس ونيول سو
او کميسيون دا نتيجه تر لاسه کړه، چې د
لومړيو پنځوسو کلونو له پاره يو نيم سل ډېر
وړ کانديدان ول. البته دا څرګنده خبره ده، چې
اکاډيمي دې ټولو ته جايزې نه سواى
ورکولاى او همدارنګه لږ کښتو اديبانو ته د
جايزې د ورکړې په اړه خو فکر هم نه سواى
کېدلاى. که تېر وخت تر نظر تېر سي، نو څوک
ويلاى سي، چې په لومړۍ نيمه پېړۍ کي
ډېري جايزې د سمو پرېکړو له مخي ورکړل
سوي دي. د دوهمي نيمي پېړۍ د جايزو په اړه
پورته وويل سول، چې د وړ کسانو د پيدا
کولو له پاره ډېر ښه چوڼ او چاڼ وسو. د
کميسون پر کړنو ډېري نيوکي د لومړۍ
لسيزي پر جايزو باندي کېږي. د دوهمي او
درېيمي لسيزي جايزې ډېري کمي متنازعه
وې، خو له ۱۹۳۰ څخه تر ۱۹۳۹م کلونو پوري
کار په نسبي ډول کمزوری وو. په ۱۹۳۴ او
۱۹۳۶ کي (پيرنډالو) او (اونيل) ته د جايزو د
ورکړې فيصلې هم وروسته غلطي وختې.
همدارنګه ورجينيا وولف (Virginia
Woolf) غوندي ادبي شخصيت صرف نظر
سو او (پرل ايس بک) غوره کړل سو. د
لومړۍ او دوهمي نړيوالي جګړې د منځ زمانه
له هغو زمانو څخه ده، چې د لوېديځې نړۍ د

ادب مځکه پکښې شېرازه سوې ده. په دوهمه نړیواله جګړه کې کمیسون داسې وسایل نه لرل، چې د هغه وخت د ادیبانو په اړه سمې پرېکړې وکولای سي، البته له دوهمې نړیوالې جګړې وروسته اکاډیمي د هغو نقادانو هیلې ورپوره کړې، چې سخت انتقادونه یې کول. په دې دوران کې اکاډمي هغو خلکو ته جایزې ورکړې، چې په بېلابېلو ژانرونو کې یې نوې تجربې کړې وې. ژید (Gide)، ایلیت (Eliot)، فاکنر (Faulkner)، هیمنګوې او بیکټ ته ورکړل سوې جایزې د دې پرېکړې د ثبوت په توګه یادېدلای سي.

د کمیسون پر فیصلو چې کومې نیوکې کېږې، ځینې یې د زمانې پر تېرېدو مبني وي، ځکه نقادان په دې باور دي، چې پراوسټ (Proust)، کافکا (Kafka)، ریلکې (Rilke)، موسل (Musil)، کاوافي (Kavafy)، مینډلستیم (Mandelstam)، ګارشیالورکا (Garcia Lorca)، او پیسوا (Pessoa) ته باید نوبل جایزې ورکړل سوې وای. د زمانې (د تېرېدو) له جوازه پرته دغه کسان په رښتینې معنی د جایزې مستحق ول او هغوی ته د جایزې نه ورکول د کمیسیون ناکامي ده. اما د کافکا، کاوافي او پیسوا لیکنې د هغو تر مړینې وروسته چاپ سوې. همدارنګه د مینډلستیم د شاعرۍ مهم اړخ د هغه په هغو نظمونو کې لیدل کېږې، چې مېرمنې یې د هغه تر مړینې وروسته چاپ کړل. د دا نورو ادیبانو موضوع هم همداسې وبوله، هغوی د خپلو مهمو اثارو د چاپ پر وخت له نړۍ سترګې پټې کړې، نو روښانه خبره ده، چې له مړینې وروسته دا جایزه نه سي ورکول کېدای. د موسل په ادبي ارزښت هم د یو محدود شمېر کسانو پرته نور څوک نه پوهېدل. د هغه تر مړینې لس کاله وروسته د هغه اثار په پراخ ډول خپاره سول.

د شلمې پېړۍ وروستۍ جایزه ګنټر ګراس ته ورکړه سوه. که څه هم د کمیسون دا انتخاب وستایل سو، خو پوښتنه دا رامنځ ته سوه، چې هغه ته دا جایزه د هغه د عروج پر وخت ولې ور نه کړه سوه؟ او اوس ولې ورکول کېږي؟ لومړۍ پوښتنه مو ړ ۱۹۷۰ یمو کلونو ته بیایي. په دې وخت کې د بول (Boll) او ګراس (Grass) دور وو. د ۱۹۷۲م جایزه بول ته په الماني ادب کې د تازه کارۍ له امله ورکړه سوه، خو دا تازه کاري په ادب کې د یوې نوې تجربې پر بنسټ نه وه، بلکې له نهیلیزم څخه د ادب پر را ایستلو ولاړه وه. معنی دا چې هغه د الماني ادب د اخلاقي احیا مسئول ګڼل سوی وو. د کمیسیون د دې ټاکنې له امله ګراس څو کاله له صحنې څخه ورک سو. حتی تر دې بریده چې د یو هنرمند په توګه د هغه پر زوال تبصرې وسوې. که چیرې د کمیسیون هغه غړي چې ګراس ته ئې جایزه ورکړه، د ۱۹۷۲م کال په کمیسیون کې هم موجود وای، نو د بول پر ځای به ګراس جایزه وړې وای. د پوښتنې دوهمه برخه د پرېکړې له زمانې سره اړه لري. د نوبل جایزې نوی روش د کمیسیون په غړو او په ځانګړې ډول سکرتر پورې اړه لري. دوی شلمه پېړۍ مطالعه کړه او موږ ته ئې د مشاهدې نوي اندازونه رامعرفي کړل. یا په بله وینا ګراس چې کومه اوږده زمانه په خپله لیکنه کې راونغښته، د هغه (د دې کمال) غوره ستاینه د پېړۍ په وروستۍ زمانه کې ورکول کېدای سوای. همدار رنګه په وروستیو کلونو کې داسې څو نور کسان هم منځ ته راغله، چې د نوموړي سبک ئې خپل کړی دئ. په دې کسانو کې ګبریل ګارشیا مارکویز، ناډین

گورډيمر (Nadine Gardimer) او کينز ابرواو (Kenzaburo) شامل دي. ګراس په ادب کي د نوو تمايلاتو په بنسټګرو کي خپل مقام تر لاسه کړ.

دا چي کميسيون ګراس د پېړۍ په پای کي غوره کړ، په دې توګه دوی يو بل مقصد هم تر لاسه کړ، ځکه هيس، ژيد او ايليټ ته د جايزې په ورکولو سره د شلمي پېړۍ په دوهمه نيمايي کي يو نوی رقابت شروع سو. د ۱۹۹۹م کال جايزه د دې خبري څرګندونه ده، چي کميسون په دې کي څونده بريالي توب تر لاسه کړی دئ، چي نوبل جايزې ته د يو ريښتيني ادبي ايوارډ مقام ور په برخه کي. د اوويايمي لسيزي په پيل کي کميسيون د هنري تجربيت په بيه د اخلاقي ارزښتونو حواله ورکولای سوای. په داسي حال کي چي په اوس مهال کي دا کار تقريباً ناممکن دئ. د ګراس ناول د هغه په خپل وطن کي خورا متنازعه ثابت سو. البته د جايزې له پاره د هغه غوره کول، د دې خبري ثبوت دئ، چي کميسون د سياسي رموزو ډېره پروا نه کوي. د نظر خاوندان په دې باور دي، چي د دې پېړۍ په وروستيو جايزو کي کميسيون په پوره بريالي توب سره دا ثابته کړه، چي دغه جايزه يوازې او يوازې ادبي جايزه ده.

نور بيا ...

***

د ح. رزمي ټولونه:

## ګل خبري

- کله چي مور وده کوو مور نه بدلېږوخو هره ورځ په وضاحت سره زمور اصليت څرګندېږي.
- زما مشوره دا ده چي واده وکړه، که دي ښه جوړه په نصيب سوه نو به خوشحاله ژوند ولرې او که نه نو بيا به فيلسوف درڅخه جوړ سي.
- د ستونزي څخه د تېښتي ښه لاره د هغې حل کول دي.
- هغه څوک چي د تازه مېوې هيله لري بايد د درختي سرته پورته سي.
- هغه څه چي د خدای د رضائيت سبب کېږي د هغه د مخلوق خدمت دئ، يو څوک نه سي کولای د خدای سره مينه ولري خو د خپل ورور څخه کرکه وکړي.
- خپل دښمنان وبخښه خو نومونه ئې مه هيروه.
- د فلسفې زده کړه د دې سبب کېږي چي انسان په ژوند کي په هوښياری سره ناخوښه واوسي.
- هيڅکله چا ته په کښته سترګه مه ګوره مګر دا چي ته د هغه د راپورته کولو په وخت کي مرسته ورسره کوې.
- کله چي يو څوک د چا کور سوځوي، نو وه! څه عجب اور به ځني پورته کېږي.
- د بشريت په وړاندي بايد باور د لاسه ورنه کړو، بشريت هغه سمندر دئ چي په څو چټلو څاڅکو نه مردارېږي.

(د دوهم مخ پاته ...)

خو څنګه چې د رازونو په څرګندولو کې رښتیا خبري راځي او رښتیا ویل ترخه وي، نو ته به ما وبخښې که زما په سپینو ویلو کې هم ځیني ترخه مګر له حقیقته ډک مطالب ښکاره سي، هو ! راځه چې دواړه په سړه سینه د خپل ژوندون دردونه او عیبونه یو بل ته سره ووایو او بېله کوم شخصي تعصبه وربانديې غور وکړو او د درملو چاره یې وسنجوو.

که زه تېروتی وم، ته مي لارښوونه وکړه او که ستا څخه لاره ورکه وه زه به دي لاس ونیسم، او که فرضاً دواړه بې لاري وو، نو د لارښوونکي په لټون او څرک پسې به هڅه کوو، څو چې د خپل ژوندون دردونه علاج او عیبونه اصلاح کړو، او ځانته د یوه خواږه او ښه ژوندون دنیا جوړه کړو. زه او ته قدرت داسي پیدا کړي یو، چې که غواړو او یا نه غواړو زما او ستا ژوند سره تړلی دئ او هم مو د ژوندون لاره یوه ده، پر یوه لاره روان یو، خو په پټو سترګو او یو له بله ناخبره یوه نامعلوم لوري ته درومو، نه تا زما څخه پوښتنه وکړه چې د مقصد منزل چیري دئ؟ او نه ما وپوښتلې چې چیرته روان یو؟ پخپله همدا خبره زما او ستا د ژوندون یو لوی درد او څرګند عیب دئ.

راځه چې سره وپوښتو، د مقصد منزل وټاکو، او بیا په پرانیستو سترګو او په ټینګ عزم د یو بل په مرسته د خپل مطلب خوا ته هڅه وکړو.

تر څو به یو له بله ناخبره همداسي په توره تیاره کي روان یو؟ څو قدمه به اخلو، بیا به همداسي د پرېشانۍ او لالهاندۍ په حال کي درېږو او په بې اطمینانۍ او اضطراب سره به د رڼا په څرک پسي ټپرېږو؟

راځه چې د خپلو سپېڅلو زړونو مشعلونه بل کړو او د هغو په رڼا کي په پاک نیت د خپل ژوندون لاره صافه کړو.

# Kandahar

Bi-Monthly Magazine of Kandahar information & culture Department



**د عبدالله محزون پوپلزي د دیوان د (جیم) ردیف مخ**

**د ارواښاد استاد نوري په ښکلي خط**